# درسی کتاب



لیکوال: عبدالله وردک لندن

۱۳۹۶

www.haqiqat.se

ډیزاین: الحاج ستنه خان ښمان سویډن

19/11/2017 عبدالله وردک

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

"In the name of Allah ,the Most Beneficent ,the Most Merciful."

# شروع کوم  په نامه د الله(ج) چه رحمن او رحيم دی

**ګرانو او محترمو ورونو اوخويندو السلام عليکم  ورحمت الله  وبرکاته !**

له الله(ج) ښخه هيله کوم چه تاسي ټول روغ او جوړ وی۰

دغه لاندې پښتو درسونه ما د انګلستان په يوه ښار کې چې سوتهمپټن نومېږي، د افغانانو اولادو ته خاص د ثواب په خاطر درس ورکاوه۰ هېره د نوي چې د رياضي او تعليم الحق درسونه هم پکې شامل و۰ د هلکانو دپاره د شنبې ورځ او د نجونو دپاره د يکشنبې ورځ د سهار له ۹ بجو ښخه د مازديګر تر ۵ بورې تعين شويي وې۰ دغه درسونه که چېرې په صحيح طريقه پکار واچول شي، نو دغو لاندې خلکو ته به ان شاءالله ګټور واقع شي۰

الف ـ هغو ته چې انګلسي پوهېږي او غواړي پښتو زده کړي، چې زموږ او تاسې اولادونه ټول پکې راځي۰

ب ـ  هغو ته چې پښتو پوهېږي او غواړي چې انګلسي زده کړي، چې زموږ او تاسي ځنې ورونه او خويندې ټول پکې راځي۰

ج ـ تر خپل وسه کوښښ شوی دی چې لږ شانته ښې خبرې هم پکې زده کړو۰

نوټ : ما له ټولو ورونو او خويندو ښخه خواهش وکړ چې دغه په دری ترجمه کړي، لېکن څوک حاضر نشول۰ که څوک غواړي چې دغه  په دری ترجمه کړي، نوزما سره د اړيکه ونيسي۰

ګرانو او محترمو ورونو او خویندو السلام علیکم و رحمت الله وبرکاته !

له الله(ج) څخه هیله کوم چې تاسې ټول روغ او جوړ وی، اوالله(ج) د وکړي چې ماته ، زما مور او پلار ته ، زما اولادونو ته ، زما ټولې کورنی او ټولو مسلمانانو ته د زړه له کومي دعا وکړی٠ والسلام٠

عبدالله وردک٠ زما اړیکه : abdullahwardak53@gmail.com

ا ب پ ت ټ ث

ج ځ چ څ ح خ

د ډ ذ ر ړ ز

ږ ژ س ش ښ ص

ض ط ظ ع غ ف

ق ک ګ ل م ن

ڼ و ه ی ې ي

ۍ ئ ء - ، ؛

؟ ٠ ١ ٢ ٣ ۴ ۵ ۶ ٧ ٨ ٩

# لومړی درس(لوست)

↓

**First Lesson**

کتاب

↓




↓

Book

منه

↓



↓

Apple

ګل

↓



↓

Flower

طیاره (الوتکه)

↓



↓

Airplane

پیاله

↓



↓

Cup

پیاز

↓



↓

Onions

لمر

↓



↓

Sun

آس

↓



↓

Horse

ناک



Pear

غوا



Cow

جوار



Corn

انګور



Grape

فيل مرغ



Ostrich

حج



Hajj

مار



Snake

صابون




Soap

ستن



Needle

دېګ



Saucepan

بوټ



Shoes

توپ



Ball

چراغ



Light

وری



Lamb

ډوډۍ



Bread

زينه



Ladder

سپی



Dog

وزه



Goat

خر



Donkey

اوبښ



Camel

ګيدړه



Fox

پړانګ



Leopard

زمری



Lion

پشی



Cat

# دوهم درس(لوست)

## Lesson No.2

مکتب



School

ښځه



Woman

سړی



Man

شاگردان



Students

کیله



Banana

خربوزه



Melon

هندوانه



Watermelon

سویه



Rabbit

قلم



Pen

پنسل



Pencil

چوکۍ



Chair

چوکۍ



Bench

سړک



Road

چاینکه



Teapot

موټر



Car

مرچک



Pepper

ګراج



Garage

جومات



Mosque

کور



House

کوڅه



Street

زنګي ګړی



Alarm Clock

دېوالي ګړی



Clock

د لاس ګړی



Watch

بام



Roof

دروازه



Gate

ور



Door

راديو



Radio

تلویزیون



Television

آشپزخانه



Kitchen

کناراب



Toilet

تشناب



Bathroom

کړکۍ



Window

کچالو



Potatoes

بانجان



Tomatoes

ونه



Tree

باغ



Garden

دلاس مينځلو ځاى



Sink

بايلر



Boiler

مرکزګرمي



Central Heating

بخارۍ



Heater

د ديوال کاغذ



Wallpaper

د پزې پاکولو کاغذ



Tissue Paper

د لاس پاکولو کاغذ



Kitchen Towel

د تشناب کاغذ



Toilet Paper

پاکي



Razor

د اوبو سطل



Water Bucket

شامپو




Shampoo

صابون




Soap

زردآلو



Apricot

شفتالو



Peaches

تور بانجان



Aubergine

بادرنګ



Cucumber

چغندر



Beetroot

ګازرې



Carrot

انار



Pomegranate

تورۍ



Courgette

ليمو



Lemon

سرې شلغمې



Red Turnip

سپينې شلغمې



White Turnip

شنه پياز



Spring Onion

# دریم درس(لوست)

## Third Lesson

اوړی    پسرلی




ژمی    منی



ژمی    منی    اوړی    پسرلی

مرغه    باران    واوره







Snow    Rain    Bird

| | | |
|---|---|---|
| دودکش | چپرکټ | الماری |





| | | |
|---|---|---|
| Chimney | Bed | Cupboard |

## دکال خلورفصلونه

Four seasons of the year

| | | | |
|---|---|---|---|
| ژمی | منی | اوړی | پسرلی |
| Winter | Autumn(fall) | Summer | Spring |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ویښتان | مخ | پوزه | سترګې | هډوکی |
| Hair | Face | Nose | Eyes | Bone |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لمر | نیمه ورځ | نیمه شپه | ورځ | شپه |
| Sun | Noon | Midnight | Day | Night |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مڼه | انګور | مځکه | آسمان | لرګی |
| Apple | Grapes | Land | Sky | Wood |

| | |
|---|---|
| زما د پلار نوم عبدالله دی | زما نوم عبیدالله دی |
| My father name is Abdullah | My name is Obaidullah |

| | | | |
|---|---|---|---|
| غټه پیاله | پیاله | ترموز | ترموز |
| Mug | Cup | Vacuum Flask | Thermos |

| | | | |
|---|---|---|---|
| چای جوشه | شین چای | تور چای | چای |
| Teapot | Green Tea | Black Tea | Tea |

| | | | |
|---|---|---|---|
| کاغذ | مرچ | مالګه | بوره |
| Paper | Pepper | Salt | Sugar |

| | | | |
|---|---|---|---|
| تندہ ↓ Forehead | غاښونه ↓ Teeth | شونډې ↓ Lips | غوږ ↓ Ear |
| غرب ↓ West | شرق ↓ East | جنوب ↓ South | شمال ↓ North |
| سپوږمۍ ↓ Moon | چوکۍ ↓ Chair | کور ↓ House | کلی ↓ Village |
| حجم ↓ Volume | حجاب ↓ Hijab | غیرحاضر ↓ Absent | حاضر ↓ Present |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حیوان ↓ Animal | حکومت ↓ Government | حوض ↓ Pool | حرارت ↓ Temperature | حدیث شریف ↓ Hadith |

نقشه ګلان ستن قند رباب بوټ




تبله منه کتاب مار دوا انګور




جوار حج پیاله توپ زینه ختکی



چراغ دېګ ډوډۍ راډیو ړوند صابون




غوا فیل مرغ ژمی طیاره ګل



لمر وری هوسۍ یوم آس



آش آذان کښت ټال



مالټه کټ ټغر پیاز






# د ګران افغانستان نقشه

نوټ : اوس ځنې ولايتونه پکې علاوه شوي دي



# څلورم درس(لوست)

↓

## Fourth Lesson

دکال څلورفصلونه

↓

Four seasons of the year

| پسرلی | اوړی | منی | ژمی |
|---|---|---|---|
| Pasarlai | Orai | Manai | Zamai |
| Spring | Summer | Autumn(fall) | Winter |

| لرګی | تیږه | ډبره | اوسپنه | یخ |
|---|---|---|---|---|
| Largai | Teega | Dabara | Ospana | Yakh |
| Wood | Stone | Stone | Iron | Ice |

| هډوکی | سترګې | پوزه | مخ | ویښتان |
|---|---|---|---|---|
| Hadokai | Stargay | Poza | Makh | Wishtan |
| Bone | Eyes | Nose | Face | Hair |

| | | | |
|---|---|---|---|
| نیمه شپه | روځ | ورځ | شپه |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Midnight | Day | Day | Night |
| مځکه | آسمان | لمر | نیمه ورځ |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Earth | Sky | Sun | Noon |
| منه | انګور | مځکه | ځمکه |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Apple | Grapes | Land | Earth |

| | |
|---|---|
| زما د پلار نوم عبدالله دی | زما نوم عبیدالله دی |
| ↓ | ↓ |
| My father’s name is Abdullah | My name is Obaidullah |
| زما د پلار نوم امان الله دی | زما نوم احمد دی |
| ↓ | ↓ |
| My father’s name is Amanullah | My name is Ahmad |
| زما د مور نوم ملالۍ دی | زما نوم جمیله دی |
| ↓ | ↓ |
| My mother’s name is Malalai | My name is Jamila |

| | |
|---|---|
| زما د کلي نوم عرب خیل دی | زه په افغانستان کښې د وردګو د ولایت یم |
| My village name is Arabkhail | In Afghanistan, I come from Wardak Province |

| | |
|---|---|
| زه اصلاً د افغانستان یم | زه الحمدالله مسلمان یم |
| Originally, I come from Afghanistan | Alhamdulillah, I am a Muslim |

| | | | |
|---|---|---|---|
| د بېګاه ډوډۍ | د غرمې ډوډۍ | د سهار چای | امتحان |
| Dinner | Lunch | Breakfast | Exam |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حج | زکات | روژه | لمونځ | شهاده | د اسلام پنځه بناوې |
| Hajj | Zakat | Fast | Salat | Shahada | Five pillars of Islam |

| | | | |
|---|---|---|---|
| غټه پیاله | پیاله | ترموز | ترموز |
| Ghata Piala | Piala | Termooz | Termooz |
| Mug | Cup | Vacuum Flask | Thermos |

| | | | |
|---|---|---|---|
| چای جوشه | شین چای | تور چای | چای |
| Chaai Joosha | Sheen Chaai | Toor Chaai | Chaai |
| Teapot | Green Tea | Black Tea | Tea |

کاغذ → Kaghaz → Paper

مرچ → Mrach → Pepper

مالګه → Maalga → Salt

بوره → Boora → Sugar

تنده → Tanda → Forehead

غاښونه → Ghaashoona → Teeth

شونډې → Shanday → Lips

غوږ → Ghwag → Ear

مستقیمه لار → Mostaqeema Laar → Straight Path

نیک اعمال → Nek Amaal → Good Deeds

نیک عمل → Nek Amal → Good Deed

دوکان → Dookan → Shop

اې الله! موږه د دوزخ له اوره وساتې

O Allah! Save us from the Hell fire

اي الله! موږه دستا له قهر او غضب نه وساتې

↓

O Allah! Keep us from Your Wrath

د پلار او مور د خوب كوتې ته بې له اجازې مه داخلېږى

↓

Do not enter your parents bedroom without permission

د چا كورته بې له اجازې مه ننوزه

↓

Do not enter someone’s house without permission

| دپوهنتون استاد | دسرمعلم معاون | سرمعلم | معلم |
|---|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| De Pohantoon Ostaad | De Sar Malem Maawin | Sar Malem | Malem |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Lecturer | Deputy Head | Head Teacher | Teacher |

| د پوهنتون د رئيس معاون | دپوهنتون رئيس | پوهنتون |
|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ |
| De Pohantoon De Raees Maawin | De Pohantoon Raees | Pohantoon |
| ↓ | ↓ | ↓ |
| Vice-Chancellor | Chancellor | University |

مسلمان همسایه(ګاونډی)

Musalman Hamsaya

Muslim Neighbour

څنګ په څنګ همسایه

Sang Pa Sang Hamsaya

Next Door Neighbour

لرې ګاونډی

Laray Gawandai

Distant Neighbour

څنګ ته مکتب

Sang Ta Maktab

Nearby School

نږدې مارکټ

Neezday Market

Nearby Market

نږدې مسجد

Neezday

Nearby Mosque

وزير

Minister

صدراعظم

Prime Minister

جمهور رئيس

President

لويه جرګه

Grand assembly

د کابل پوهنتون ډېرې فاکولتې (پوهنځۍ) لري

Kabul University has many Faculties

د کابل پوهنتون ډېر استادان لري

Kabul University has many lecturers

د کابل سفرد ښنګه و؟

How was your trip to Kabul?

د ستا امتحان ښنګه وو؟

How was your exam?

د افغانستان جمهور رئيس بايد ډېر ښه سړی وي

The president of Afghanistan should be a very nice man

هغه حقوق چه ښځو ته په اسلام کې ورکړل شوي دي هغه په بل هيڅ دين کې نه دی ورکړل شوي

The rights which are given to women in Islam are not given in any other religion

د سنتو مطابق خوړل اوڅکل بايد په ښي لاس سره وشي

According to Sunnah Muslim should eat and drink with right hand

| غرب | شرق | جنوب | شمال |
|---|---|---|---|
| West | East | South | North |

| سپوږمۍ | چوکۍ | کور | کلی |
|---|---|---|---|
| Moon | Chair | House | Village |

| حجم | حجاب | غیرحاضر | حاضر |
|---|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Volume | Hijab | Absent | Present |

| حیوان | حکومت | حوض | حرارت | حدیث شریف |
|---|---|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Animal | Government | Pool | Temperature | Hadith |

# پنځم درس(لوست)

**Fifth Lesson**

ث = ثواب

Reward

روژه نیول ډیرثواب لری

Fasting has a lot of rewards

د ناروغ پوښتنه ډیر ثواب لري

Visiting a sick person has a great reward

زه د ثواب کارونه کوم

I do charity work

کابل د افغانستان پایتخت دی

Kabul is the capital of Afghanistan

کابل د افغانستان پایتخت دی

Kabul is the capital city of Afghanistan

کابل ډېر سوړ ژمی او ګرم اوړی لري

Kabul has a very cold winter and a hot summer

مسلمانان باید د اختر په ورځو کې ښې جامې واغوندي

Muslims should wear their best clothes during Eid days

په اسلام کښې د خنزیردغوښې خوړل حرام دي.

Eating pork is not allowed in Islam

غیبت کول په اسلام کښې حرام دی.

Backbiting is not allowed in Islam

| | | |
|---|---|---|
| هرځای | هېڅکله | همېشه |
| Everywhere | Never | Always |
| هر څوک | هر چیرې | هر وخت |
| Anyone | Anywhere | Anytime |

| | | | |
|---|---|---|---|
| غوږ ونیسه | ولیکه | ووایه | ولوله |
| Listen | Write | Say | Read |

همېشه په خپل وخت لمونځ کوه

Always pray on time

همېشه خپل زکات په خپل وخت اداء کوه

↓

Always pay your Zakat on time

همېشه خپل ځان له شرابوڅخه وساته

↓

Always keep away from drinking alcohol

همېشه د نیکو ملګرو سره اوسه

↓

Always be with good friends

هېڅکله خپل لمونځ مه پرېږده

↓

Never miss your prayer

هېڅکله د دروغو شاهدي مه ورکوه

↓

Never give false testimony

هېڅکله ډېره ډوډۍ مه خوره
↓
Never eat too much

هېڅکله د چا بې عيزتي مه کوه
↓
Never insult anyone

په ټوله دنيا کې تريوه ميليارد نه زيات مسلمانان شته
↓
There are over one billion Muslims throughout the world

کورس → Course

چاقو → Knife

جغرافيه → Geography

جنت → Paradise

د پسه غوښه → Mutton

د غوايه غوښه → Beef

کوفته → Mince Meat

غوښه → Meat

د چرګ غوښه → Chicken

د اوښ غوښه → Camel Meat

د خوګ غوښه → Ham

د خوګ غوښه → Pork

کمپيوټر → Computer

موټر → Car

کوڅه → Street

سړک → Road

| | | | |
|---|---|---|---|
| شفتالو ↓ Peaches | ناک ↓ Pear | زردآلو ↓ Apricot | کتابخانه ↓ Library |
| هندوانه ↓ Water Melon | خټکی ↓ Melon | خربوزه ↓ Melon | انځیر ↓ Fig |
| رومي بانجان ↓ Tomato | فشار ↓ Pressure | غاړه کۍ ↓ Necklace | لښتۍ ↓ Earrings |
| هم صنفي ↓ Classmate | ملګری ↓ Friend | دوست ↓ Friend | دښمن ↓ Enemy |
| پښې ↓ Feet | پښه ↓ Foot | لاسونه ↓ Hands | لاس ↓ Hand |
| د جنازې لمونځ ↓ Janazah Prayer | د عید لمونځ ↓ Eid Prayer | د جمعې لمونځ ↓ Friday Prayer | |

# شپږم درس(لوست)

↓

## Sixth Lesson

دهفتې ورځې

↓

**Week Days**

| شنبه | یکشنبه | دوشنبه | سه شنبه | چهارشنبه | پنجشنبه | جمعه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Saturday | Sunday | Monday | Tuesday | Wednesday | Thursday | Friday |

| جمع کول | تفریق کول | ضرب کول | تقسیم کول |
|---|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Add | Subtract | Multiply | Divide |

| توره تخته | سپینه تخته | تباشیر | مثال |
|---|---|---|---|
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Balack board | White board | Chalk | Example |

ستانوم څه دی؟

↓

What is your name?

زمانوم عبدالله دی

↓

My name is Abdullah

ستا د پلار نوم څه دی؟

What is your father's name?

زما د پلارنوم عبدالرحمن دی

My name father's name is Abdul Rahman

ته کوم مکتب ته ځې؟

Which school do you go?

زه د کنټل مکتب ته ځم

I go to cantles  school

ته څوکلن یې؟

How old are you?

زه شل کلن یم

I am twenty years old

ستا ورور څو کلن دی؟

How old is your brother?

زما ورور پنځوس کلن دی

I am twenty years old

ته د کوم ځای یې؟

Where are you from?

زه د افغانستان یم

I am from Afghanistan

د ستا د کلي نوم څه دی؟

What is your village name?

زما د کلي نوم عرب خیل دی

My village name is Arab Khail

| | |
|---|---|
| ستا دین څه دی؟ | زما دین اسلام دی |
| ↓ | ↓ |
| What is your religion? | My religion is Islam |

| | |
|---|---|
| د ستا مورنۍ ژبه څه ده؟ | زما مورنۍ ژبه پښتو ده |
| ↓ | ↓ |
| What is your Mother tongue? | My Mother tongue is Pashto |

| | |
|---|---|
| ته کوم پوهنتون ته ځې؟ | زه دسوتهپمټن پوهنتون ته ځم |
| ↓ | ↓ |
| Which University do you go? | I go to Southampton University |

د حساب او کتاب په ورځ به تاسو ته معلومه شي چه بدترین سړی هغه څوک و چه دوه مخه ئي درلوده

↓

"On the day of Judgment, you will discover the worst man to be the one who had two faces"

| | | | |
|---|---|---|---|
| کیمیا | بیالوژي | تاریخ | جغرافیه |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Chemistry | Biology | History | Geography |
| فزیک | ریاضي | حساب | هندسه |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Physics | Mathematics | Mathematics | Geometry |

| | | | |
|---|---|---|---|
| متوازي | مستطيل | مربع | مثلث |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Parallelogram | Rectangle | Square | Triangle |
| دائره | اهرام | مخروط | ذوذنقه |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Circle | Pyramid | Cone | Trapezium |
| محيط | مساحت | قطر | شعاع |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Perimeter | Area | Diameter | Radius |

د ستا د كيميا د معلم نوم څه دی؟

↓

What is the name of your Chemistry teacher?

د دغه لاندې مربع مساحت پيدا کړی؟

↓

Find the area of the following square?

د يوه مستطيل محيط تاسې څنګه محاسبه کوی؟

↓

How do you calculate the perimeter of a rectangle?

مهرباني وکړی په صنف کې غالمغال مه کوی

↓

Please do not make noise in the classroom

مهرباني وکړی په صنف کې هريوه مضمون ته توجه  کوی

↓

Please always pay attention to each subject in the classroom

هرشی چه خپل ځان ته خوښوې هغه بل چا ته هم خوښوه

↓

Anything you like for yourself, you should also like for someone else

| | | | |
|---|---|---|---|
| میز | میز | جدول | تقسیم اوقات |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Desk | Table | Table | Time Table |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بوټ | بوټان | راډیو | تلویزیون |
| ↓ | ↓ | ↓ | ↓ |
| Shoe | Shoes | Radio | Television |

دغابنو کریم → Tooth Paste

باران → Rain

واوره → Snow

طیاره → Airplane

الوتکه → Airplane

موبایل تلفون → Mobile Telephone

یخچال → Fridge

بخاری → Heater

زه باید له خپل پلارسره کومک وکړم → I should help my father

زه باید له خپلې مورسره کومک وکړم → I should help my mother

زه باید له خپلې مور سره وګورم → I should visit my mother

زه باید له خپلې مور سره ووینم → I should visit my mother

زه باید د خپل ورور ملګری ووینم → I should see my brother's friend

زه باید د خپلې خور د معلم سره خبرې وکړم → I should talk to my sister's teacher

زه باید خپل کاکا ډاکترته بوزم → I should take my uncle to a doctor

زه باید خپله تروری ووینم → I should visit my auntie

# اووم درس(لوست)

↓

# Seventh Lesson

د محمّد(صلی الله علیه وسلم) د پلار نوم عبدالله و

↓

The father’s name of Prophet Mohammad (PBUH) was Abdullah

د محمّد(صلی الله علیه وسلم) د مور نوم آمنه وه

↓

The mother’s name of Prophet Mohammad (PBUH) was Aumina

ابوبکرصدیق(رضي الله عنه) د مسلمانانو لومړنی خلیفه و

↓

Abu Bakar (RA) was the first Caliph of the Muslim

رحمت الله د اولمپیک په لوبو کې د نقرې مډال وګاټه

↓

Rahmatullah won a silver medal in the Olympic game

رحمت الله د اولمپیک په لوبو کې د سپینو زرو مډال وګاټه

↓

Rahmatullah won a silver medal in the Olympic game

د نېپال پایتخت کتمندو دی

↓

The capital of Nepal is Kathmandu

نېپال ډېرې ښکلې منظرې لري

↓

Nepal has lots of beautiful scenery

د نېپال خلک د نېپالي په نامه یادیږي

↓

People from Nepal are called Nepali

ځنې نېپالیان د شاهي کورنی سره مخالفت کوي

↓

Some Nepali are opposing the royal family

په افغانستان کې ډیر نوعه میوې شته

↓

There are many types of fruits in Afghanistan

په انګلسي ژبه کې نفل لمنځونو ته آپشنل لمنځونه وائي

↓

Nafal prayers are called optional prayers in English language

دی په خپله ټولنه کې د ښه نفوذ خاوند دی

↓

He has lots of influence in his own community

دژوند په هر شي کې نظافت لازم دی

↓

Cleanliness is required in every aspect of life

هر وخت د پلار او مور نصيحت ته غوږ نيسه

↓

Always listen to the advice given by your parents

زما يوملګرى په نيوزيلنډ کې اوسيږي

↓

One of my friend live in New Zealand

د امکان په صورت کې اول دوه رکعته نفل لمونځ کوه او بيا له الله(ج) څخه ديوه شي سوال کوه۰

↓

Pray two rakat nafal first if possible and then ask Allah (SWT) for any help

موږه بايد خپل نوکان په منظم ډول سره کم کړو

↓

We should regularly cut our nails

د ابوهريره(رض)څخه روايت دى چه رسول الله(صلى الله عليه وسلم) وفرمايل: د الله(ج) په دربار کې د بنده ګانواعمال د دوشنبې اوپنجشنبې په ورځو کې وړاندې کيږى. زه خوښ لرم چې کله زما عمل وړاندې کيږى چې زه روژه وم.

منبع:الترمذي، دوهم جلد، صفحه ۱۸۵ ،حديث نمبر۷۴۷،انګريزي ترجمه، امام حافظ ابوعيسى محمد۰

747: Abu Hurairah(RA) narrated that the Messenger of Allah(SWT) said: “The deeds are presented on Monday and Thursday. So I love that my deeds be presented while while I am fasting.”

**(Hasan)English translation of Jami At-Tirmidhi, Compiled by: Imam Hafiz Abu Essa Mohammad, Page 185, Volume 2.**

# آتم درس(لوست)

↓

# Eighth Lesson

په جماعت سره لمونځ کول ډېر ثواب لري

↓

Praying in congregation has lots of rewards

جلال آباد په افغانستان کښې ښه ځاي دی

↓

Jalalabad is a good place in Afghanistan

د جمعي ورځ د ټولومسلمانانو د پاره د دوی په ملکونو کښې عمومي رخصتي وي

↓

Friday is a public holiday for all the muslims in their own countries

لُطفاً د جمعي دخطبې په وخت کې چُپ اوسه

↓

Please remain quiet during Friday Khutbah

افغانستان له چین سره شریک سرحد لري

↓

Afghanistan has a common border with China

چین ډېر زیات نفوس لري

China has lots of population

چا چې د غریبوخلکو سره مرسته وکړه، نو الله(ج)به هغو ته د قیامت په ورځ اجر ورکړي

Whoever helps poor people will get reward on day of Judgement

د افغانستان خلک داسې فکر لري چه د محمد(ص) مبارکه خرقه په کندهار کې ده

Afghans think that the cloak of Prophet Mohammad (PBUH) is in Kandahar

په غیراسلامي ملکونو کې باید د هغو شیانو څخه چه حیواني چربي ولري ځان وساتو

In non muslim countries we should avoid using products containing animal fat

د ده کالي هر وخت چټل وي

His clothes are always dirty

دی همېشه چټل کالي اغوندي

He always wear dirty clothes

دا چمن شین دی

This is a green park

په چمن کښې ګلان شنه کیږي

Flowers grow in the park

د مسلمانانو جنتري له هغه وخت څخه شروع شوه چې کله محمد(ص) مدینې منورې ته هجرت وکړ

Muslim calendar started from the time when Prophet Mohammad (PBUH) emigrated to Madina

د افغانستان د کال میاشتې

Months of Afghanistan Year

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حمل | ثور | جوزا | سرطان | اسد | سنبله |
| 1st Month | 2nd Month | 3rd Month | 4th Month | 5th Month | 6th Month |
| میزان | عقرب | قوس | جدي | دلو | حوت |
| 7th Month | 8th Month | 9th Month | 10th Month | 11th Month | 12th Month |

بین المللي ټولنه → **International Community**

د افغانانو ټولنه → **Afghan Community**

د افغانانو د ټولنې مرکز (دفتر) → **Afghan Community Centre**

د آسیائي خلکو ټولنه → **Asians Community**

ملکي(عادي) خلق → **Civilian**

د ملکي خلکو مرګ ژوبله → **Civilian Casualty**

ائتلاف → Alliance

سیاسي ائتلاف → Political Alliance

کمکی (صغیره) ګناه → Minor Sins

حج اداء کول → Perform Hajj

نیک اعمال → Good Deeds

لویه (کبیره) گناه → Major Sins

خلاف د قانون عمل کول → Breaking the Rules

په ښکاره نه منل → Open Defiance

عمره اداء کول → Perform Umra

غیر قانوني → Unlawful

قانوني → Lawful

قانون ماتول → Breaking the law

قانون ماتول → Breaking the Rules

د الله (جَلِ جَلاَ لُهُ) رضاء → Pleasure of Allah (SWT)

د الله (جَلِ جَلاَ لُهُ) رضاء → Allah's Pleasure

د الله (جَلِ جَلاَ لُهُ) په خاطر → For the sake of Allah(SWT)

د الله (جَلِ جَلاَ لُهُ) رضاء → Pleasing Allah (SWT)

د نایجریا حکومت له ماښام څخه ترسهاره پورې د خلکو په تګ راتګ بندیز لګولی → The Nigerian Government imposed a dusk to dawn curfew in the capital

**د شپې بندیز** → **Curfew**

**عبادت کول**

**Worship**

مونږه باید یوازې د الله(ج) عبادت وکړو

We should worship Allah (SWT) alone

موږه باید له الله(ج) سره هیڅ شی شریک ونه نیسو

We should not associate any partner with Allah (SWT)

الله(ج) یو دی۰ محمّد(ص) د الله(ج) رسول دی۰

Allah(SWT) is one. Mohammad (PBUH) is the Prophet of Allah (SWT)

بابا قرآن شریف وایي۰ قرآن شریف د الله(ج) کتاب دی۰

Grandfather is reciting Quran Sharif. Quran Sharif is the Book of Allah (SWT).

زه خپل کالي پاک ساتم۰ پاکوالی ښه دی۰

I keep my clothes clean. Cleanliness is good.

اشرف تور ویښتان لري۰ ظفرخان تور آس خوښوي۰

Ashraf has black hair. Zafar Khan likes black horse.

زما ماما ټوپک لري٠ ټوپک لرل په دغه ملک کې منع دي٠

↓

My uncle has a gun. Gun is banned in this country.

د ناروغ پوښتنه ثواب لري٠ زه د ثواب کارونه کوم٠

↓

Visiting a sick person has a reward. I do charity works.

# د افغانانو د ټولنې مرکز

↓

# Afghans Community Centre

ګرانو او قدرمنو ورونو او خویندوالسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

↓

Dear and respected brothers and sisters السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

داچمن شین دی٠ په چمن کې ګلان شنه کیږي٠

↓

This is a green park. Flowers grow in the park.

زما کاکا حج ته ځي٠ د حامد پلارحاجي دی٠

↓

My uncle is going to Hajj. Hamid father is Haji

حج کول فرض دی٠ حج د اسلام پنځمه بناء ده٠

↓

Hajj is Fard. Hajj is the fifth pillar of Islam

الله(ج) یو دی٠ زه د الله(ج) بنده یم٠ زه په الله(ج) ایمان لرم٠

↓

Allah(SWT) is one. I am the slave of Allah(SWT). I believe in Allah(SWT)

د سهارلمونځ ځلور رکعته دی٠ لومړني دوه رکعته سنت او وروستني دوه رکعته فرض دي٠

↓

Fajar prayer is 4 rakats. The first 2 are sunna and the last 2 are fard

هر وخت د خوړلو اوڅکلو په وخت کې له ښی لاس څخه کار واخلی.

↓

Always eat and drink with your right hand.

په استنجاء کې له چپ لاس څخه کار واخلی٠

↓

Use your left hand during the استنجاء

هروخت پوزه په چپ لاس پاکوی.

↓

Always clean your nose with left hand.

د استنجا په وخت کې چپ لاس استعمال کړی.

↓

Use your left hand for cleaning your private parts.

همېشه د ډوډۍ خوړلوڅخه مخکې خپل لاسونه ومينځی.

↓

Always wash your hands before eating.

همېشه د ډوډۍ خوړلوڅخه مخکې بسم الله ووايی.

↓

Always say bismellah before eating.

موږه بايد په ټولوحالتونوکې دالله(ج) څخه شکرګذاره واوسو.

↓

We should be thankful to Allah(SWT) in all situations

# نهم درس(لوست)

↓

# Ninth Lesson

زه د الله(ج)په نامه ډوډۍ خوړل پیل کوم۰ موږ په کورکې یوځای ډوډۍ خورو۰

↓

I start eating with the name of Allah (SWT). We eat meal together at home.

زما پلارمیلمنوته ډوډۍ ورکوي۰ په کابل کې د یوې وچې ډوډۍ قیمت لس افغانۍ و۰

↓

My father gives food to the guests. The price of a bread in Kabul was ten Afghanis.

د روژې په میاشت کې روژه نیول فرض دي۰

↓

Fasting in the month of Ramadan is Fard.

مسلمانان په کال کې یوه میاشت روژه نیسي۰

↓

Muslims fast one month in a year.

د ژمي په موسم کې په افغانستان کې ډېره یخني وي۰

↓

It is very cold in Afghanistan during the winter season.

خلک په ژمي کې تودې جامې اغوندي٠

↓

People wear warm clothes in the winter

په ژمي کې کله کله د سالنګونو کوتل د موټرو په مخ بندوي٠

↓

Sometimes Salang pass is closed for traffic during the winter.

په کابل کې کله کله په ژمي کې ډېرې واورې پرتې وي٠

↓

Sometimes during the winter there is lots of snow in Kabul

حاجي صاحب نعمت الله له خپلې میرمنې سره یوځای عمرې ته تللی دی٠

↓

Haji Sahib Nimatullah went for Umra with his wife

عبدالشکور د جمعې په ورځ له امریکا څخه لندن ته رارسیږي٠

↓

Abdul Shakor will arrive to London from America on Friday.

د جمعې په ورځ غسل کول سنت دي٠

↓

Taking bath on Friday is sunnah

صداقت ښه کاردی٠ صادق سړی د هرچا خوښ وي٠ مسلمان سړی باید صادق وي٠

Honesty is good. Everybody likes an honest man. Muslim should be an honest man.

چا ته ضرر رسول ګناه ده٠ ښه سړی هیڅکله د خلکواحساسات نه جریحه دارکوي٠

Harming others are a sin. A good person never hurts others feelings.

د ګل احمد کشر ورور د سیدآباد په لیسه کې شاګرد دی٠

Gul Ahmad's younger brother is a student in Said Abad High School

مونږه او تاسې ټول د ټولنې په مقابل کښې ډیر مسئولیت لرو

All of us have a great responsibility toward our society

ټول مسلمانان یو له بله سره ورونه او خویندې دی

All Muslims are brothers and sisters with each other

د منځني ختیځ زیاتره ملکونه د ګرمۍ په موسم کې شین چای استعمالوي

Green tea is usually used during the hot season in most of the Middle East countries

موږه  په کور کې د چای جوشې په ځای ترموز استعمالوو

↓

We do not use teapots at home and use thermos instead

په انګلستان کې خلک په چپ لاس موټر چلوي

↓

People drive on the left In England

د چرګانوجنګ د افغانستان په ځنو برخو کې یوه عامه لوبه ګڼل کیږي

↓

Cockfight is a common game in some parts of Afghanistan

خلک چرګانې د هګۍ اچولو د پاره ساتي

↓

Hens are kept for laying eggs

د ستا پلار چیرته دی؟  زه غواړم چه څه ورته ووایم

↓

Where is your father? I want to tell him something

د چرم کمربند د پلاستیک د کمربند څخه ډېر پایښت کوي

A leather belt lasts longer than a plastic one

جنجال کول ښه کار نه دی

Creating problems is not good

ددې تعمیرارتفاع لس متره ده

The height of this building is 10 meters

ددې تعمیرلوړوالی لس متره دی

The height of this building is 10 meters

استراحت د صحت د پاره ښه ګټه لري

Rest is useful for health

ته لږ استراحت ته ضرورت لرې

You need some rest

ته لږ د مې ته ضرورت لرې

You need a break

موږ باید خپلو اولادوته ښه اخلاق ورزده کړو

We should teach good manners to our children

زموږ اولادونه باید په مسجد کې ښه اخلاق زده کړي

Our children should learn good manners in the Mosque

په عادي ډول سره شپه د خوب او ورځ د کار دپاره ده

↓

Night is normally for rest and day is normally for work

ډېرو ملکونو د بریطانیا څخه استقلال ترلاسه کړی دی

↓

Most of the countries got their independence from Britain

د دنیا ډېرو ملکونو د بریطانیا څخه آزادي ترلاسه کړې ده

↓

Most of the countries in the world got their independence from Britain

په ځنې ملکونو کې د ترافیک اشاره کار نکوي

↓

In some countries, the traffic signal does not work

په ځنې ملکونو کې د ترافیک اشارې بالکل نشته

↓

In some countries, there is no traffic signals at all

د دواړوعیدونو اعلان هر وخت په سعودي عربستان کې کیږي

↓

The announcement of the two Eids always happens in Saudi Arabia

د جنازې د لمانځه اعلان د مسجد امام کوي

↓

Imam of the mosque announces the funeral prayers

د امریکې متحده ایالات په نړۍ کښې تر ټولو قوی اقتصاد لري

↓

United States of America has the strongest economy in the world

موږ باید په خپل اسلامیت افتخار وکړو

↓

We should feel proud of being muslims

امام ابوحنیفه( رحمت الله علیه) په اسلامي نړۍ کې یوله مشهورو امامانوڅخه شمیرل کیږي

↓

Imam Abu Hanifa (رحمت الله علیه) was one of the greatest scholar in the Muslim world

زموږه محلې جومات څلور ملا امام لري

↓

Our local Mosque has four imams

زموږ د ریاضي امتحان ډېر مشکل و

↓

Our Math exam was very hard

د افغانستان خلق تر ټولو څخه زيات امن ته  ضرورت لري

↓

People of Afghanistan need security more than anything else

د الله (سبحانه وتعالی) يو له غټونعمتونو څخه امن دی

↓

Security is one of the greatest blessings of Allah (SWT)

فرانسه او جرمنی د اورپائي اتحاديې له دوو مهموغړوڅخه شميرل کيږي

↓

France and Germany are both very important members of the European Union

مورږ مسلمانان د الله(ج) په ټولو پيغمبرانو ايمان لرو

↓

Muslims believe in all Prophets of Allah (SWT)

د محمّد(ص) څخه وروسته بل پيغمبر نه راځي

↓

No other Prophet is coming after Prophet Mohammad (PBUH)

ده له دووهفتو وروسته په خپله ګناه اعتراف وکړ

↓

He confessed to his guilt after two weeks

# لسم درس(لوست)

↓

# Tenth Lesson

زه د یوه کمکي عملیات دپاره د منتظرینو په لست کي یم

↓

I am in the waiting list for having a minor operation

اوس ټول افغانان باید د ریښتنی صلحې د پاره په ګډه کار وکړي

↓

All Afghans should work together for a real peace in their country now

ښنل نسبت انتقام اخستلو ته بهتر دی

↓

Its better to forgive than taking revenge

ښنل د انتقام اخستلو نه ښه دي

↓

Its better to forgive than taking revenge

دغه ښه کار ته ادامه ورکړه

↓

Carry on with your good work

خپل سبق ته ادامه ورکړه

↓

Carry on with your study

زما ریښتنی ارمان دغه دی چه په افغانستان کي یو حقیقي اسلامي حکومت ووینم

↓

Its my sincere wish to see a real Islamic government in my country

الله(ج) دهغو ټولو ته چه د نورو خلکو سره مرسته کوي ډېر اجرونه ورکړي

↓

May Allah (SWT) give lots of rewards to those who helps others

الحمدالله ما خپل لومړنی حج په ۱۹۹۹کال کې اداء کړ

↓

Alhamdulillah I performed my first Hajj in 1999

ده په امتحان کې اعلیٰ نتیجه لاسته راوړه

↓

He got an excellent result in his exam

کله چې د قرآن شریف آیتونه تلاوت کیږي خبرې مکوه

↓

Don’t talk while verses of Quran are recited

هرکله چه د قرآن شریف آیتونه تلاوت کیږي چپ اوسه

↓

Keep quiet when verses of Quran are recited

موږه او تاسې ټول د ټولنې په مقابل کښې ډیر مسئولیت لرو

↓

All of us have a great responsibility toward our society

ټول مسلمانان یو له بله سره ورونه او خویندې دي

↓

All Muslims are brothers and sisters with each other

موږ په کور کې د چاى جوشې په ځاى ترموز استعمالوو

↓

We do not use teapots at home and use thermos instead

د ستا د موټر د مخې چراغ کار نکوي

↓

The front light of your car does not work

زموږ د کوڅې ګروپونه بدليدو ته اړتيا لري

↓

Our street lights need replacement

د ده انا يوه ډېره مهربانه ښځه ده

↓

His grandmother is a very kind lady

الله(ج) د موږ ټولو ته جنت فردوس په نصيب کړي (آمين)

↓

May Allah (SWT) grants us all Janatul-Firdaus (Ameen)

اکثره وخت کابل شین آسمان لري

↓

Kabul has a sunny sky most of the time

ډېر وخت کابل شین آسمان لري

↓

Kabul has a sunny sky most of the time

افغانستان په مرکزي آسیا کې موقعیت لري

↓

Afghanistan is located in central Asia

په آسترالیا کې لومړنی جومات د افغانانو پواسطه جوړ شوی دی

↓

The first mosque in Australia was built by Afghans

مونږ باید د هر انسان آبرو ته احترام ولرو

↓

We should respect the dignity of every human being

عبدالجمیل قرآن شریف په ډېر خواږه آواز سره تلاوت کوي

↓

Abdul Jamil recites Quran with a sweet voice

زه د ستاسې د پاره په راتلونکوکلونوکې د ښه ژوند آرزو کوم

↓

I wish you a happy life for years to come

کاشکي زما مور او پلار ژوندي واى

↓

I wish my parents were alive

د افغانستان په شمال کې ډېرآبشارونه شته

↓

There are many waterfalls in the north of Afghanistan

د ده اولادونه آش بآ لکل خوښ نلري

↓

His children do not like noodles at all

محمّد (صلی الله علیه وسلم) د الله (جَلِ جَلاَ لُهُ ) رسول (پیغمبر) دی

↓

Mohammad (SAWS) is The Messenger of Allah (SWT)

ا = اخلاق　　　یومسلمان باید د ښو اخلاقو خاوند وي

Manners　　　A muslim should have a good manner

آ = آذان　　　**آذان** کول سنت دی　　　هغه څوک چه **آذان** کوي هغه ته **مُؤذِن** ویل کیږي

AZAAN(call to prayer)　　　Azzan is Sunnah　　　One who call Azzan is called Moazzin

موږه په خپل باغ کې ډېرې دمڼو ونې لرو

We have many apple trees in our garden

موږه بحرته ډېرنږدې اوسیږو

We live very close to the sea

د تاشقرغان بادام ډېرمشهوردي

Almond from Tashqur Ghan is very famous

موږ باید خپل اولاد ته د عمر په لومړني وخت کې ښه آداب وروښیو

We should teach good manners to our children at an early age

د ده زوی آخرينۍ آزموينه په ښو نومرو سره پای ته ورسوله

↓

His son passed his final exam with good marks

الله(ج) د دغه مشکلاتو څخه خلاصيدل درته آسانه کړي

↓

May Allah (SWT) make it easy for you to overcome this difficulties

په قرآن شريف کې واضح آيات دی چې وايي: زنا ته مه نږدې کيږی

↓

There is a clear verse in the Quran which says: do not get near to adultery

دغه به ډېر ښه کاروي چه د ورځې دوه د قرآن شريف آيتونه ياد کړو

↓

It will be great if we memorise two verses from the Quran every day

دغه به ډېرښه کار وي چه د ورځې د قرآن شريف په دووآيتونوځان ښه پوه کړو

↓

It will be great if we fully understand two verses from the Quran every day

دغه به ډېر ښه کار وي چه د ورځې د قرآن شريف دوه آيتونه په ځان عملي کړو

↓

It will be great if we fully implement two verses from the Quran every day

له بيکاره خبرو کولو څخه چپ پاتې کيدل بهتره دي

↓

Its better to keep quiet than talking nonesense

حکومت بايد د بيت المال په برخه کې ډېره پاملرنه ولري

↓

The government should be very careful when it comes to public money

په هره ټولنه کې ښه او بد خلک شته دي

↓

There are good and bad people in every society

موږ بايد کوښښ وکړو چه خپل بد عادتونه اصلاح کړو

↓

We should try to correct our bad habits

## يوولسم درس(لوست)

↓

## Eleventh Lesson

هرملک بايد د خپلو سياسي بنديانو سره انساني رويه وکړي

↓

Every country should treat their political prisoners humanely

لومړنی آذان بلال(رضی الله عنه) په مدينه منوره کې کړی دی

↓

The first call to prayer was done by Bilal (RA) in Madinah

الله(ج) په حلال رزق کې ډېر برکت اچوي

↓

Allah (SWT) puts lots of blessings in Halal earnings

توربانجان په دې ملک کې ډېر قيمته دي

↓

Aubergine costs too much in this country

هغه سړی چه د باغ مراقبت کوي هغو ته باغوان ويل کيږي

↓

The person who looks after garden is called a gardener

باغوان د ښه باغ په قدر پوهيږي

A gardener understands the importance of a nice garden

هرباغ، باغوان لري

Every garden has a gardener

د ستا لور ډېره بې جرئته ده او هيڅ کوم سوال نکوي

Your daughter is very shy and she does not ask any question at all

د ستا لور ډېره بې جرئته ده او هيڅ کوم سوال نکوي

Your daughter is very shy and she does not ask any question at all

د ستا ځوې هم ډېر بې زړه دی او دی هم هيڅ کوم سوال نکوي

Your son is also very shy and he does not ask any question either

باسواده او بې سواده خلک سره برابرندي

Literate and illiterate people are not equal

موږ باید په خپل ملک کې د بې سواده خلکو شمیرکم کړو

↓

We should reduce the number of illiterate people in our country

موږ باید همیشه کوښښ وکړو چې د بې فایدې خبرو څخه ځان وساتو

↓

We should always try to avoid useless talking

ډېرافغانان د افغانستان څخه بیرون ژوند کوي

↓

Many Afghans live outside Afghanistan

په افغانستان کې په زیاته اندازه بیرونۍ لاسوهنه شته ده

↓

There are lots of outside interference in Afghanistan

پدې ملک کې هغه کورونه چه برنډه ولري ډېر کم دي

↓

There aren't so many houses with a balcony in this country

موږ همېشه د ادرس بدلول باید ډاکتر ته ووایو

↓

We should always report the change of address to our GP

بې برقه ژوند به ډېرګران وي

↓

A life without electricity will be very difficult

ببر یو ډېر قوي حیوان دی

↓

Tiger is a very powerful animal

ببر به د زمري په شان قوي نوي

↓

A tiger may not be as strong as a lion

بېنډۍ پدې ملک کې ډېرې قیمته دي

↓

Okra is very expensive in this country

افغانان د هر خوراک سره وچه ډوډۍ ډېره خوښوي

↓

Afghans always like to have bread with their meals

د روژې په میاشت کې مسلمانان یو له بله سره خپل خواړه د روژه ماتي په وخت کښې شریکوي

↓

In the month of Ramadan, Muslims share their meals with each other when they break their fast

الله(ج) د موږ.ه په سمه لاره برابر کړي

↓

May Allah (SWT)  keep us all on the right  path

موږ له الله(ج) څخه غواړو چه موږ.ه ټول په صراط المستقيم پابند وساتي

↓

We ask Allah (SWT) to keep us all on the straight path (Siratul Mustaqeem)

الله(ج) دې د موږ.ه ټولو دین او دنیا برابر کړي

↓

May Allah(SWT) makes our lives good in this world and hereafter

**هرکله چه د محمّد (ص) نوم یاد شي نوباید په هغه درود (صلی الله علیه وسلم) وویل شي**

↓

Whenever the name of Prophet Mohammad (PBUH) is mentioned, we should say: **(صلی الله علیه وسلم)**

ته باید هر وخت له خپل ډاکتر سره د دوا په خوړلو کې مشوره وکړې

↓

You should always consult your GP for taking any medicine

احمد د کابل په پوهنتون کې طب وايي

↓

Ahmad is studying medicine at Kabul University

ملګري ملتونه په هر ملک کښې دفترې لري

↓

United Nation has offices in every country

د يوه مثلث دې داخلي زاويو مجموعه ۱۸۰ درجې ده

↓

The sum of the interior angles of a triangle 180 degrees

لطفاً د خپلوځايوڅخه ترهغه وخته مه خوځيږی چې څو الوتکه په مکمل ډول سره نده دريدلې

↓

Please remain seated until the plane stops completely

د دايرې په محيط باندې هره نقطه له مرکز څخه مساوي فاصله لري

↓

**Every point on the circumference of a circle has equal distance from the centre**

له بدو کارو څخه ځان ساتل ډیره ګټه لري

Keeping away from bad actions has lots of advantages

د زیاتې مالګې استعمالول د صحت د پاره ښه نه ده

Using plenty of salt is no good for your health

د یوه ملک د خلکو دپاره ښه رهبر د الله(ج) له طرفه ستر نعمت دی

A good leader is a great blessing of Allah (SWT) to the people of the country

د اسلام څخه مخکې دوره کې به خلکو خپلې لوڼې ژوندۍ ښخولې

In the pre-islamic era, people were burying their daughters alive

الحمدالله زه له خپلو اولادو څخه ډېر خوښحاله یم

Alhamdulillah I am very pleased with my children

د مدینې منورې په ښار کې زیات زیارتونه شته

City of Madina got lots of shrines

له سود څخه په هرقيمت چې کيږي بايد ځان ترې وساتل شي

↓

Usury must be avoided at all costs

د زيتون غوړي د صحت د پاره ډېر ګټور دي

↓

Olive oil is very useful for your health

ځنې ماران چه په غرنيو منطقو کې پيدا کيږي ډيرقوی زهر لري

↓

**Some snakes which can be found in some mountainous parts have very strong poison**

په پاکستان کې څو کاله مخکې ډېره غټه زلزله وشوه

↓

There was a big earthquake in Pakistan few years back

د محمد(ص) د لوڼو له جملې څخه يوه زينب وه

↓

Zaynab was one of the daughters of Prophet Mohammad (PBUH)

## دوولسم درس(لوست)

## Twelfth Lesson

زکات پر مسلمانانو فرض دی

Zakat is obligatory upon each muslim

زکات غریبانانو ته ورکول کیږي

Zakat is given to poor people

یو مثلث درې زاويې لري

A triangle has 3 angles

د یوه مثلث د زاويو مجموعه ۱۸۰ درجې ده

Sum of triangle angles is 180 degrees

یو مثلث درې زاويې لري

A triangle has 3 angles

د مثلث د زاويو مجموعه ۱۸۰ درجې ده

Sum of triangle angles is 180 degrees

د مار زهر ډېر خطرناک دي

Snake poison is very dangerous

زهر خوړل سړی مړ کوي

Poison kills someone

د کرهنې وزارت

Ministry of Agriculture

افغانستان یو زراعتي ملک دی

Afghanistan is an agricultural country

په افغانستان کښې ژمی په معمولي ډول سره دري میاشتې دوام لري

Winter in Afghanistan usually lasts 3 months

دافغانستان په ځنوساحو کې په ژمی کې ډېرې واورې کیږي

Some parts of Afghanistan get heavy snow during the winter

بې علمه ژوند گران دی

Life without education is difficult

انسانان باید له خپل ژوند څخه ښه گټه واخلي

Human being should benefit from his life

زما پلار الحمدالله گیره لري

Alhamdulillah my father has a beard

ږیره پرېښودل سنّت ده

Having beard is sunnah

د اوداسه په وخت کښې ټوله ږیره باید لمده شي

In ablution(Wudu) water should reach every part of beard

نن زموږ سبق د مور او پلار د حقوقو په باره کې و

Today's lesson was about the rights of parents

زه په مکتب کې سبق وایم

I study at school

ما د قرآن شریف سبق یاد کړی دی

I memorised my Quran sharif lesson

زما مشره خور په مدرسه کښې درس وايي

My elder sister studies at Madrasa

موږ باید د هغه شیانو چې نه پوهیږو له عالم څخه پوښتنه وکړو

We should ask Alim about something we do not know

ما د رياضي د امتحان پنځه سوالونه صحيح حل کړل

I answered five questions correctly in Math exam

ټول مسلمانان باید کار وکړي او له سوال کولو څخه ترخپلې وسې پورې خپل ځانونه وساتې

All Muslims should work and try to keep themselves away from begging as much as possible

مسلمانان بې له الله (ج) څخه بل چاته سجده نکوي

Muslim do not prostrate to anyone except Allah (SWT)

په لمانځه کې سجده کول فرض ده

It is Fard to do Sajda in Salah

ما پرون د احمد نیکه په جومات کې ولیده او د هغه لاسونه ډیرضعیف شوی دي

I saw Ahmad grandfather yesterday in the mosque and his hands became very weak

زه پرون د هغو د پوښتني دپاره شفاخانې ته ورغلی وم او دی ډېر ضعيف ښکاره کيده

↓

I visited him in the hospital yesterday and he looked very weak

موږ د يوه مسلمان په حيث بايد هيڅکله چاته ضرر ونه رسوو

↓

We as a muslim should never harm anyone

ديوه پاک ضميرخاوند به هيڅکله هم دده په شان داسې بد کار ونکړي

↓

A person with a clear conscience will never do such a bad thing like he did

جنرال ضياًلحق له ۱۹۷۹ څخه تر۱۹۸۸پورې د پاکستان ولس مشر پاته شوی

↓

General Ziaul Haq ruled Pakistan from 1979 until 1988

باران اورېده او زه لوند شوم

↓

It was raining and I got wet

هوا يخه او لنده وه

↓

The weather was cold and wet

په ژمي کې د افغانستان په ځنو ځايو کې خلک د لاندي غوښه استعمالوي

↓

People in some parts of Afghanistan use dried meat during the winter

د ده اولادونه لږترلږه د ورځې څلور ليتره تازه شيدې څکي

↓

His children drink at least four litres of fresh milk every day

حتیٰ یو لیونی به هم داسې کارونکړي لکه ده چه وکړ

↓

Even a mad man will not do what he did

زما مشر ورور په ۲۰۰۲ کال کې له نړۍ څخه سترګې پټې کړې

↓

My elder brother passed away in 2002

موږ.باید لږ شانته لنډ پطلون واغوندو

↓

We should wear a little bit short trousers

د ده پطلون لږشانته لنډ دی

↓

His trousers is a little bit short

ورځ په عادی توګه سره له لمرخاته څخه ترلمرلوېده پورې ده

↓

Daytime normally starts from sunrise until sunset

موږ.ه د يوه مسلمان په صفت بايد کوښښ وکړو چې عربی ژبه زده کړو

↓

We as Muslims should try to learn Arabic language

د یوه لیتر پطرولو بیه لس فیصده پورته شوله

The price of one litre of petrol went up by 10%

سعودی عربستان ټول کال زیات لمر لری

Saudi Arabia got lots of sun throughout the year

عمرد ګرمۍ په موسم کې د لنډو لستونو یخن قاق اغوندي

Omar likes wearing shirt with short sleeve during the hot weather

اکثره غټې لارۍ د شپې له خواه مالونه انتقالوي

Most of the big lorries transport goods during the night

د اسلام لاره به تا د جنت په لور رهنمائي کړي

The way of Islam will leads you to Paradise

د شیطان لاره به تا د دوزخ  لور ته بوزي

The way of Satan will leads you to Hell

بعضې لاتيني الفاظ تراوسه پورې په انګريزی ژبه کې استعماليږي

↓

Some of Latin words are still used in English language

پرمسلمانانوهروخت لازم ده چه د ټولو انسانانو سره ښه رويه وکړي

↓

Muslims are always required to be nice to their felow human beings

دوی ته نظر په قانون لازم ده چه د خپلو اولادو د تعليم پيسې ورکړي

↓

They are required by law to pay for their children education

يوې مسلمانې ښځې ته لازم ده چه په عامه ځايونوکې حجاب واغوندي

↓

A Muslim lady is required to wear Hijab in public places

يومسلمان بايد هميشه ښه مناسب لباس واغوندي

↓

A Muslim should always wear decent clothes

مسلمانان بايد د خپل ژوند هره لحظه د نيکو اعمالو په کولو مصرف کړي

↓

Muslims should use every moment of their lives performing good deeds

# دیارلسم درس(لوست)

↓

# Thirteenth Lesson

موږه د یوه مسلمان په حیث باید کوښښ وکړو چې عربی ژبه زده کړو

↓

We as Muslims should try to learn Arabic language

یا الله! موږه ټول د ستا له لعنته وساتې

↓

O Allah! protect us all from your curse

د روسانو او امریکایانو د تجاوز په مقابل کې مقاومت ډېرو قربانیو ته ضرورت درلود

↓

Resistance against Russian and American invasions needed a lot of sacrifices

د روسانو د اشغال په دوران کې نږدې یونیم میلیونه افغانان شهیدان شول

↓

Almost one and a half million Afghans were martyred during the Russian occupation

زیات شمیر افغانان د امریکا اشغالګري اود روس اشغالګري یوشان ګڼي

↓

Majority of Afghans consider the American occupation exactly in the same way as the Russian one

زه د امام شوکت له تلاوت څخه لذت اخلم، خصوصاً د ماخستن د لمانځه په وخت کې

↓

I enjoy listening to the recitation of Imam Shawkat, especially, during the Isha prayer

یومتل دی چه وائي بې عقل دوست له هوشیاردشمن څخه ډېر مضر دی

↓

There is a proverb which says that a foolish friend is more harmful than a wise enemy

مکه مکرمه د هرمسلمان په زړه کې خاص ځای لري

↓

Makkah Mukarama has a special place in the heart of every Muslim

مدینه منوره هم د هرمسلمان په زړه کې خاص ځای لري

↓

Madinah Munawara also has a special place in the heart of every Muslim

زما ماما د ثانوي مکاتبو د پاره د فزیک د کتاب مُوَلف و

↓

My uncle was the author of physics for secondary schools in Afghanistan

مصرد اهرامونو له کبله ډېرمشهور دی

↓

Egypt is very famous for its pyramids

هیڅوک هم دا حق نلري چه د نورو خلکو ملکیت وران کړي

↓

No one has the right to destroy other people properties

دوی د خپل امتحان له نتایجو څخه ډېرمأیوسه و

↓

They were very disappointed from their exam results

افغان ولس د خپلو سیاست مدارانو څخه ډېرمأیوسه دی

↓

People of Afghanistan are very disappointed from their politicians

زموږه ماموریت په دې دنیا کې د نیکواعمالو سرته رسول دي

↓

Our mission in this world is to do good deeds

په دغه نږدې وختو کې متأسفانه زما د یوه ملګری تشخیص وښودل چې د زړه مرض لري

↓

Recently, one of my friend was unfortunately diagnosed with a heart disease

هغه مریض چه د سرطان په مرض اخته وي، خپله لازمه تداوی په افغانستان کې نشي ترسره کولای

↓

A cancer patient cannot get the required treatment in Afghanistan

ځنې مریضان د نورو څخه زیات خدمت ته ضرورت لري

↓

Some patients need more care than others

زه فکر کوم دده مریضي سخته ده

↓

I think he got a serious illness

زما په فکر سره دده مریضي جدي ده

↓

I think his illness is serious

اسلام په کلکه د مریض د پوښتنې توصیه کوي

↓

Visiting a sick person is strongly recommended in Islam

په افغانستان کې هروخت په یوه اوبل نامه مظاهرې رواني وي

↓

There are always demonstrations of one way or another in Afghanistan

زما له زامنو څخه دوه متاهل او یو مجرد دی

↓

Two of my sons are married and one is single

له پنځو سوو څخه زيات خلک خپلوعملياتو ته منتظر دي

↓

More than 500 people are waiting for their operations

افغاني مېلمه پالنه په ټوله نړۍ کې شهرت لري

↓

Afghan hospitality is famous throughout the world

د افغانستان قالينې په ټوله نړۍ کې مشهورې دي

↓

Afghan rugs are famous throughout the world

موږ بايد په عالي سويه معلمان په خپلو ښوونځيو کې ولرو

↓

We should have highly qualified teachers in our schools

د ده کوچنی وراره په ابتدائيه مکتب کې متعلم دی

↓

His youngest nephew is a student in a primary school

ددې ورور د لندن د پوهنتون د لومړی ټولګي محصل دی

↓

Her brother is a first year student in London university

د هارون الرشید د حکومت په دوره کې بغداد د علم مرکز و

↓

Baghdad was the centre of knowledge during Haroon Rashid government

په افغانستان کې ځنې خلک غواړي چې د مرکزي حکومت قدرت کم کړي

↓

Some people in Afghanistan want to reduce the power of the central government

ځنې خلک په قصدي ډول سره غواړي چې د مرکزي حکومت نفوذ کم کړي

↓

Some people deliberately want to weaken the influence of the central government

ما معمار ته وویل چې مربع شکله کاشي په تشناب کې استعمال نکړي

↓

I told the builder not to use square tiles in the bathroom

په عمومی توګه سره دری ډوله مثلث وجود لري

↓

Generally there are three types of triangles

ځنې پس مانده ملکونه ددې توان نلری چه حتی د خپلو کارکوونکوعادی معاش ورکړي

↓

Some underdeveloped countries even cannot pay the basic salary to their employees

ځنې شاته پاته ملکونه ددې توان نلری چه حتی دخپلو کارکوونکوعادی تنخواه ورکړي

↓

Some underdeveloped countries even cannot pay the basic salary to their employees

ددې کلنی معاش ۲۰۰۰۰ پونډه دی

↓

Her salary is £20000 per year

دا د کال ۲۰۰۰۰ پونډه معاش لري

↓

She have an annual salary of £20000

دده کلنی معاش ۲۰۰۰۰ پونډه دی

↓

His salary is £2000 per month

دی د کال ۲۰۰۰۰ پونډه تنخواه اخلي

↓

He has a monthly salary of £2000

غير رسمی ليدنې د موږه د وطن مسئله نه شي حل کولای

↓

Unofficial visits will not solve the conflict in our country

دا د هغو لپاره غيرعادی ده چه خپل صنف ته ولاړ نشي

↓

It is very unusual for him not to turn to his class

دابه ښه کار نوي چې د غریبانو سره مرسته ونکړو

It will not be good, not to help poor people

دا به ښه وي چې د یتیمانو سره مرسته وکړو

It will be good to help orphans

د نړۍ مسلمانانو هروخت هرمصیبت ته په سخاوتمندانه ډول سره چنده ورکړېده

Muslims throughout the world always donated generously toward any disaster

دده دکان ډېرمشتریان لري

His shop got lots of customers

دی له خپلومشتریانو سره ډېره ښه رویه کوي

He is treating his customers very nicely

دده له دکان څخه ډېر خلق سودا کوي

His shop got lots of customers

دی خپلومشتریانو ته لس فیصده تخفیف ورکوي

He is offering 10% discount to his customers

دی ډېرمشکلات لري

He has lots of problems

موږ باید هېچاته مشکلات خلق نکړو

We should not create problems to anyone

موږ همېشه باید په دغه کوښښ کې و چه د خلکوڅخه مشکل کم کړو

We should always try to alleviate other people problems

دی له ډېرو مشکلاتوسره مخامخ دی

He has lots of problems

دی مالي مشکل لري

He has financial problems

زموږه مرحوم پلار به هروخت موږ ته ویل چې هېڅکله خپل ورځني لمنځونه ترک نکړی

Our late father always told us not to miss any daily prayers

هرڅوک که نر وی او که ښځه، د خپل عمل مسئول دي

Everyone is responsible for his/her action

دا د مور او پلار مسئولیت دی چې خپل اولادوته ښه اخلاق ورزده کړي

It is the parents responsibility to teach their children good manners

احمد د وزن د پورته کولو په مسابقه کې طلائي مدال وګاټه

Ahmad won a gold medal in the weight lifting race

# څوارلسم درس(لوست)

**Fourteenth Lesson**

موږه یوه موقتي ځای ته چې هلته خپلو اولادوته د پښتو او دری درس ووایو، ضرورت لرو

We need a temporary place to teach Pashtu and Dari to our children

ددې ملک داخله وزارت وویل چه موږه ټول په موقتي ډول سره په دغه ملک کې پاته کیدای شو

The Home office said that for the time being we can all stay in this country

مور او پلار باید خپلو زامنو او لونو ته یو شان توجه وکړي

Parents should pay equal attention to his sons and daughters

د ټکټونو بیه د رخصتۍ په موسم کې پورته ځي

Ticket prices normally go up during the holiday season

د ده لنګی د موټر په ټکر کې مات شوی و

His leg was broken during the car accident

زموږه مال باید موږه د هغو مسئولیتونو څخه چې د الله (ج) په مقابل کې یې لرو، غافلګیرنکړي

Our wealth should not detract us from our responsibilities toward Allah(SWT)

موږه باید خپل مال په خیریه کارونو کې مصرف کړو

We should spend our wealth in good causes

زما یو ماما په ۲۰۱۱ کال کې وفات شو

One of my uncle passed away in 2011

زما ماما د اویاو کلونو په عمر مړ شو

My uncle was 70 years old when he died

د الله(ج) شکر دی، زما یو ماما تر اوسه پورې ژوندی او د ښه صحت خاوند دی

Thank God! One of my uncle is still alive and well

حکومت او د هغه مخالفین په قطر کې د صلحې خبرې اترې کوي

The government and its opponents are talking peace in Qatar

موږه باید خپلو اولادونو ته لارښوونه وکړو چې د هرقسم مخدره موادو د استعمال څخه ځانونه وساتي

We should always teach our children to refrain from using any forms of drugs

خلک د خپل اولیه حقونو څخه لکه د سرپناه څخه محروم دي

People are deprived of their basic rights such as housing

د زياتې مالګې استعمال د وجود د ټولو روغتيائي مشکلاتو سرچينه ده

The use of too much salt is the source of every health problems

زياته مالګه خوړل د روغتيا د پاره ډېره مضره ده

Taking too much salt is very harmful for our health

دمنځني ختيځ خلک د شوروا په جوړولو کې تور مرچ استعمالوي

People from the middle east use black pepper in making soup

زه به هيڅکله هم د هغې ښوروا مزه هيره نکړم چې زما مور جوړوله

I will never forget the taste of soup my mother used to make

افغاني غذا ډېره ښه مزه لري

Afghan food tastes very nicely

د ستا غذا دېره مزه ناکه وه

Your food was very tasty

د ستا شيربرنج ډېر مزه ناکه و

Your porridge was very delicious

همېشه احتیاط کوه چې مردانه او زنانه تشنابونه یو د بل سره غلط نکړې

↓

Always be careful not to mistaken gents toilet with ladies ones

سني مسلمانان څلور مشهور مذهبونه لري

↓

Sunni Muslims have four famous schools of thought

مسلمانان باید خپل مړي ژر تر ژره خښ کړي

↓

Muslim should bury the body of a dead person as soon as possible

مسلمانان باید خپل مړي زر تر زره خاوروته وسپاري

↓

Muslim should bury the body of a dead person as soon as possible

مسلمانان باید خپل مړي ترخښولو د مخه ښه پرېمینځي

↓

Muslims should wash the dead body before burial

زه د خپل پلار قبر ته په منظم ډول سره ورځم، او هغته دعا کوم

↓

I regularly visit my father grave and pray for him

زه د خپلي مور قبر ته په منظم ډول سره ورځم، او هغې ته د مغفرت دعا کوم

↓

I regularly visit my mother grave and pray for her forgiveness

د حکومت د کابينې څخه یوه معین د خپلو مشکلاتو له کبله استعفاء وکړه

↓

One of the junior ministers of the cabinet resigned today due to his personal problems

د هغه د بند معینه اندازه تر اوسه پورې معلومه نده

↓

His prison sentence has not been fixed yet

زما په نظرسره ده یومعقول درخواست لرلو

↓

In my opinion he had a reasonable request

زما په فکرسره ده یوه معقوله غوښتنه لرله

↓

In my opinion he had a reasonable request

زما په فکرسره ده یومعقول خواهش لرلو

↓

In my opinion he had a reasonable request

د معادنو او صنایعو وزیر نن د لوګر په ولایت کې د مسو د معدن څخه لیدنه او کتنه وکړه

↓

The Minister of mine and industry visited a copper mine in Lugar province today

پاکستان د افغانستان د شرق طرف ته واقع دی

↓

Pakistan is located to the east of Afghanistan

شرقي کلچر له غربي کلچر څخه فرق لري

↓

Eastern culture differs from the western culture

زه پدې ورځو کې ډېرمصروف یم اونه شم کولای چه له تا سره په ریاضي کې کومک وکړم

↓

I am very busy these days and I cannot help you with your Maths

د خپلې کورنۍ په غړو مصرف کول د صدقې حیثیت لري

↓

Spending money on family members is considered as a charity

زه د خپلې کورنۍ د هغوغړو په حصه کې چې په وردګو کې اوسیږي کوم معلومات نلرم

↓

I have no information about those members of my family who lives in Wardak Province

موږه د افغانستان د آینده حکومت په باره کې یوې هراړخیزې مذاکرې ته ضرورت لرو

↓

We need a comprehensive discussion about the future government of Afghanistan

زه د مېلمستیا په وخت کې دده سره په یوه مېزناست وم

↓

I was sitting with him in the same table during dinner party

تاسې د جرمنی د سفر د مصرف د غوښتلو مستحق یاستئ

↓

You are entitled to claim the expense of your trip to Germany

زموږه میاشتنی مصرف له میاشتني عاید څخه باید ډېر نوي

↓

Our monthly expenses should not exceeds our monthly incomes

په شفاخانه کې جراح دده له ګېډې څخه مرمئ لرې کړه

↓

The surgeon in the hospital removed a bullet from his stomach

په روغتون کې د جراحئ ډاکتر دده له نس څخه ګولئ لرې کړه

↓

The surgeon in the hospital removed a bullet from his stomach

هېڅوک نه پوهیږي چې څه وخت به مړکیږي

↓

No one knows when he is going to die

# پنځلسم درس(لوست)

↓

**Fifteenth Lesson**

دده د مرګ څخه وروسته دده د ښځې د تيو د سرطان تشخيص وشو

↓

His wife was diagnosed with breast cancer after his death

د هندوستان په ځنو ځايو کې قسم قسم ماران شته دي

↓

There are various types of snakes in some parts of India

د هندوستان په ځنو ځايو کې رنګارنګ ماران پيداکيږي

↓

There are various types of snakes in some parts of India

په سعودی عربستان کې اکثره موټر ايرکانډيشن لري

↓

In Saudi Arabia most of the cars got airconditions

دی د حکومت چارې په پوره طاقت سره پرمخ بيائي

↓

He is running his government with an iron fist

زما په فکرسره دی د خپلومشکلاتو په هکله مشورې ته اړتیا لري

↓

I think he needs counselling regarding his problems

همېشه د هغو ملګرو څخه چه د اعتماد وړ وي مشوره وغواړه

↓

Always ask your trustworthy friends for advice

د حکومت يو له مهمو مشاورينو څخه نن د رشوت له کبله ونيول شو

↓

One of the top government advisor was arrested for corruption

ما ده ته دغه په مجلس کې ښه واضح کړه چه هېڅکله به هم دده په غیاب کې کومه معامله نه ترسره کیږي

↓

I made it very clear to him in the meeting that no deal will be done behind his back

ما ده ته دغه په مجلس کې ښه واضح کړه چه هېڅکله به هم دده په غیاب کې کومه معامله نه ترسره کیږي

↓

I made it clear to him in the meeting that there will be no deal behind his back

تاسې ټول کال کولای شی چې په افغانستان کې مڼې لاسته راوړی

↓

You can get apple throughout the year in Afghanistan

د دغه منحني د لاندې مساحت په آسانه سره محاسبه کيدای شي

↓

Area under the curve can be calculated very easily

منځني ختيځ په دغه تيرو پنځو لسيزو کې ډېر مشکلات ليدلي دي

Middle East has seen lots of troubles during the past five decades

زما په فکر سره د عمر او اسماعيل ترمنځ منځګړيتوب به لږ.شانته مشکل وي

In my opinion mediation between Ahmad and Ismael will be a little bit difficult to arrange

زما په فکر سره د عمر او اسماعيل ترمنځ ميانجيګري به لږ.شانته مشکل وي

In my opinion mediation between Ahmad and Ismael will be a little bit difficult to arrange

منځنی ختيځ پدې نږدې کلونو کې له ډېرو تغيراتو سره مخامخ شو

Middle East went through many changes in recent years

منځني ختيځ په دغه تيرو پنځو لسيزو کې ډېر مشکلات ليدلي دي

Middle East has seen lots of troubles during the past five decades

موږه بايد خپلې ټولې معاملې د اسلام په اوصولو برابرې سرته ورسوو

We should do all of our transactions according to Islamic teachings

ده تيره هفته يو ډېر قيمتي موبايل واخيسته

He bought a very expensive mobile last week

دی دوه مخه دی

↓

He has two faces

دی یوکمکی ګرد مخ لري

↓

He has a small round face

زه فکرنه کوم چه د دغې واقعې څخه وروسته به دی چاته مخ ولري

↓

I don’t think he can face anyone after this incidence

زه فکر نه کوم چه د دغې واقعې څخه وروسته به دی چاته په مخ ورشي

↓

I don’t think he can face anyone after this incidence

مزار او مزارشریف دواړه یو دي

↓

Mazar and Mazar-e-Sharif are both the same

مزارشریف د بلخ په نامه هم یادیږي

↓

Mazar-e-Sharif is also called Balkh

د رحمان بابا مزار په پشاور کې موقعیت لري

↓

Rahman Baba shrine is located in Peshawar

د رحمن بابا مزار په پېښور کې موقعیت لري

↓

Rahman Baba shrine is located in Peshawar

عام کسر هم صورت او هم مخرج لري

A common fraction has both numerator and denominator

موږ په افغانستان کې د اوبو ډېرو ذخيرو ته ضرورت لرو

We need lots of water reservoirs in Afghanistan

دهوائي ميدان د شا او خواه  د پاره سخت امنيت لازم دی

A high level of security is required around the airport perimeter

په اسلامي حکومت کې د هرچا حقوق بايد محفوظ وي

In Islamic government the rights of each individual should be protected

د امنيت  کارکونکي بايد د آزادئ په ورځ په خپلو وظيفو کې موجود وي

The security personnel should be on duty during the independence day

دی خپل محافظین په ډېر احتیاط سره تعینوي

↓

He chooses his bodyguards very carefully

دی مسلکي محافظینو ته ضرورت لري

↓

He is looking for professional escorts

محکمه به دده د پاتې کیدو او یا د وتلو فیصله کوي

↓

The court will decide whether he can stay or leave the country

اسلام د بې ګناه خلکو وژنه د هرچا پواسطه او په هرشکل چه وي محکوم کوي

↓

Islam always condemn the killing of innocent people by anyone in any form

جمهور رئیس د صلحې د خبرو له ثمرې څخه ډېر مطمئن ښکاره کیده

↓

The president looked very confident about the outcome of the peace talk

جمهور رئیس دصلحې دخبرو له نتیجې څخه ډېر مطمئن ښکاره کیده

↓

The president looked very confident about the outcome of the peace talk

**ن = نور**

↓

**Light**

الله(ج) ملايکې له نور څخه پيداکړې دي

↓

Allah (SWT) has created Angels from light

د اطلاعاتو او کلتور وزارت د ښځينه نطاقانود پاره په يوه ياداشت کې ويلي چې ټکري په سرکړي

↓

The Ministry of culture and information issue a memo for all female newsreaders to wear headscarves

په هغه ملکونو کې نطاقي کول چه نظم او قانون پکې نه وي ډېره سخته ده

↓

News reading is not an easy job especially in a country which has no laws and orders

د امتحان نتيجه د اپرېل په پنځلسمه اعلان کيږي

↓

The exam result will be announced on 15th of April

د امتحان نتيجه د اپرېل په پنځلسمه اعلان کيږي

↓

His exam result will be published on 15th of April

هره تجربه باید یوه نتیجه ولري

↓

Every experiment should have a conclusion

بې نتیجې مجلس د وخت ضایع کول دي

↓

A meeting without any conclusion is a waste of time

د دغه مجلس نتیجې باید په مکمل ډول سره تطبیق شي

↓

The outcomes of this meeting should be implemented in full

د دغه مجلس نتیجې باید په مکمل ډول سره عملي شي

↓

The outcomes of this meeting should be implemented in full

موږ باید خپلو اولادو ته ښه اسلامي نومونه وټاکو

↓

We should choose good Muslim names for our children

دغه نوم چې ستا یاد کړ ماته آشنا شانته ښکاري

↓

The name that you mentioned does ring a bell

د خلاصولو عمليات دسالنګ په تونل کې جريان لري

The rescue operation is underway in Salang tunnel

هغه مالټې چه د پاکستان څخه راځي ډېرې اوبه لري

Orange coming from Pakistan is very juicy

کله چه زما کتاب چاپ شي نو ته به د هغه لومړنۍ نسخه ترلاسه کړې

You will get the first copy of my book when it is printed

کله چه زما کتاب چاپ شي نو ته به د هغه لومړنۍ نسخه ترلاسه کړې

You will get the first copy of my book when it is published

په اسلام کې پاکۍ ته په کلکه سپارښتنه شوې ده

Cleanness is strongly recommended in Islam

زما يوملګرى په نيوزيلنډ کې اوسيږي

One of my friend lives in New Zealand

نېپال يو ښکلی ملک دی چه طبعي ښکلا لري

Nepal is a beautiful country with lots of natural beauty

زما کاکا سږکال ان شاءالله حج ته ځي ۰

My uncle is going to Hajj this year Inshaullah

د احمد پلارحاجي دی

Ahmad's father is Hajji

حج کول فرض دی

Hajj is Fard(obligatory)

په اسلام کښي د خنزیر د غوښي خوړل حرام دي

Eating pork is forbidden in Islam

غیبت کول په اسلام کښي حرام دی۰

Backbiting is forbidden in Islam

مسلمانان باید حلاله غوښه وخوري ۰

Muslim should eat Halal meat

د حلالي غوښي دکانونه په انګلستان کښي هرځای ښته ۰

There are Halal meat shops everywhere in UK

د خپلوانو سره کومک کول ډېر اجر لري۰

Helping relatives has lots of rewards

موږ باید خپل صحت ته ډېره پاملرنه وکړو۰

We should pay lots of attention to our health

# شپاړه سم درس(لوست)

↓

# Sixteenth Lesson

زما ځني لرې خپلوان تر اوسه پورې په وردګو کې په ډېرو سختو شرایطو کې ژوند کوي

↓

Some of my distant relatives are still living in Wardak in a very difficult circumstances

زما ځنې نږدې خپلوان تراوسه پورې په پشاورکې اوسيږي

↓

Some of my close relatives are still living in Peshawar

همېشه د خپلوخپلوانو سره تماس ساته

↓

Keep close contact with your relatives

همېشه د خپلوخپلوانو سره په تماس کې اوسه

↓

Always keep in touch with your relatives

همېشه د خپلوخپلوانو سره اړيکه ساته

↓

Keep close contact with your relatives

همېشه د خپلوخپلوانو سره خپله رابطه ساته

↓

Always keep in touch with your relatives

له خپلوانو سره په هيڅ حالت کې اړيکې مه پرېکوه

↓

Never ever break relation with your relatives

زه دوې خوراني لرم، يوه له ما څخه مشره او بله کشره ده

I have two sisters, one is older and one is younger than me

زما کشره خور پنځه زامن لري

My younger sister got five sons

زما مشره خور کونډه ده او هيڅ اولاد نه لري

My older sister is a widow and she has no children

متأسفانه زه کومه خورځه نلرم

Unfortunately, I have not got any niece from my sister side

زما يوه وريره زما نګور هم ده

One of my niece is my daughter-in-law as well

زما خوريي رحيم الله د ترکيي په يوه پوهنتون کې طب وائي

My nephew Rahimullah is studying medicine in one of Turkish universities

زما وراره حبيب الرحمن د بريطانيا په يوه پوهنتون کې فارمسي وويله

My nephew Habib Rahman studied Pharmacy in one of British universities

د جنګ په میدان کې هر وخت د مړه کېدوخطر شته

↓

There is always a danger of being killed in the battlefield

د خطرسره سره موږه ته لازمه ده چه په خپل کلي کې پاته شو

↓

In spite of danger, we have to stay in our own village

که هرڅومره خطرهم وی موږه باید په خپل کلي کې پاته شو

↓

In spite of danger, we have to stay in our own village

اداري فساد د جنګ په شان خطرناک دی

↓

Corruption is as dangerous as the war

د سګرېټوڅکول د صحت دپاره ډېر خطرناک دي

↓

Smoking cigarettes is very dangerous for health

ناپوهه ډاکتران په خپله له مریضۍ څخه هم ډېرخطرناک دي

↓

Unqualified doctors are more dangerous than the illness itself

اولادونه باید بې ځایه مور او پلارخجالت نکړي

↓

Children should not cause unnecessary embarrassment to their parent

اولادونه باید بې ځایه مور او پلار ته خجالت پیښ نکړي

↓

Children should not cause unnecessary embarrassment to their parent

په افغانستان کې تقریباً ۵۰۰ خارجیان کار کوي

↓

There are almost 500 foreigners working in Afghanistan

خائن هغه څوک دی چه خپل وطن ته خیانت کوي

↓

Traitor is a person who commits treason to his country

د افغانستان د پاره د امریکا خاص استازي خپل حکومت ته دعسکرو د وتلو وینا وکړه

↓

American special envoy to Afghanistan told his government to withdraw troops from Afghanistan

نن سبا د خالصو شهدو پیداکول آسانه کار ندی

↓

Its not easy to find pure honey nowadays

یوخاصیت د منافق د وعدې نه په ځای کول دي

One characteristic of a hypocrite is not to keep his promise

د منافق یو خاصیت دروغ ویل دي

One characteristic of a hypocrite is telling lies

په هره جامعه کې ښه او بد خلک شته دي

There are good and bad people in every community

افغانی خیاط ډېر ګلالي کالي جوړوي

Afghan tailor makes very nice clothes

زما د لمسۍ خربوزې ډېرې خوښې دي

My granddaughter likes melons very much

برازیل ډېرخام مواد د امریکا متحده ایالاتو ته صادروي

Brazil is exporting lots of raw materials to USA

په پاکستان کې د خان کلمه د قبائلو د علاقې سره تړلې ده

The word “Khan” is associated with the North West Frontier in Pakistan

ده خپل ژوند د وطن د خدمت د پاره ورکړ

He gave his life for the service of his country

ده خپل ژوند د وطن د خدمت د پاره له لاسه ورکړ

He lost his life while serving his country

تیره جمعه د کعبې شریفې امام په خپله خطبه کې په ټولو مسلمانانوغږ کړ چې سره متحد شي

Last Friday imam of Kaba in his Khutba called on all Muslim to unite

که چیرې ملګري ملتونه اقتصادي بندیز په ایران ولګوي، نوعادي خلکو ته به ډېر زیان ورسیږي

Ordinary people will suffer if UN enforce economic sanction on Iran

په افغانستان کښې هرکال د خپلواکۍ ورځ لمانځله کيږي

Each year the independence day is celebrated in Afghanistan

زما خورهره ورځ د افغانستان خبرو ته غوږ نيسي

My sister listens to Afghanistan news every day

په اسلام کښی د شرابو څښل منع دي

Drinking alcohol is not allowed in Islam

د شيدو څښل د صحت د پاره ډېره ګټه لري

Drinking milk is very useful for health

هرڅوک د ورځې اقلاً يو بوتل اوبو څښلو ته ضرورت لري

Every body needs to drink at least one bottle of clean water every day

د سهار لمونځ څلور رکعته دی

Morning prayer is four rakats

د ماسپښين لمونځ لس رکعته دی

Zohar prayer is ten rakats

د مازديګر لمونځ څلور رکعته دی

Asar prayer is four rakats

د ماښام لمونځ پنځه رکعته دی

Maghrib prayer is five rakats

د ماخستن لمونځ نهه رکعته دی

Isha prayer is nine rakats

د جمعې لمونځ  دوه رکعته دی

Juma prayer is two rakats

د اختر لمونځ دوه رکعته دی

Eid prayer is two rakats

د جنازې په لمانځه کې اقامت نشته

There is no iqamat in Janaza prayer

په افغانستان کې په زياته اندازه شاړه مځکه شته

There is lots of barren land in Afghanistan

ځوانان بايد خپل ځانونه تعليم يافته کړي

Young people should educate themselves

زه خپلې جامې پاکې ساتم

I keep my clothes clean

ځوانان بايد تعليم ولري

Young people should have education

زه خپل ځان پاک ساتم

I keep myself clean

ځوانان بايد مطالعه وکړي

Young people should study

له بدو کارو څخه ځان ساتل ډیره ګټه لري

Keeping away from bad actions has lots of benefits

زموږ له ملګرو څخه ځنې انجینران او ځنې ډاکتران دي

Some of our friends are Engineers and some of them are doctors

دا د حکومتونو وظیفه ده چې د ځنګلونو ساتنه وکړي

It is the governments duty to look after the forests

دا د حکومتونو مسئولیت دی چې د ځنګلونو ساتنه وکړي

It is the governments responsibility to look after the forests

دا د حکومتونو کار دی چې د ځنګلونو ساتنه وکړي

It is the governments job to look after the forests

دا د حکومتونو کار دی چې د ځنګلونو پاملرنه وکړي

It is the governments job to look after the forests

# اوولسم درس(لوست)

↓

# Seventeenth Lesson

زموږ دين اسلام دی

↓

Our religion is Islam

زموږ دين اسلام دی

↓

Islam is our religion

د دايرې په محيط باندې هره نقطه له مرکز څخه مساوي فاصله لري

↓

Every point on the circumference of a circle has equal distance from the centre

د ده قضاوت ته په ډيپلوماتيکو کړيو کې ډېر په درنه سترګه کتل کيږي

↓

His judgment is well respected in diplomatic circles

دغه د افغانانو داخلي موضوع ده او دوی پخپله دغه بايد حل او فصل کړي

↓

This is an internal matter among Afghans and they themselves should sort out

دغه د افغانانو داخلي مسئله ده او دوی پخپله بايد د دغه څه چاره و کړي

↓

This is an internal matter among Afghans and they themselves should sort out

دغه د افغانانو داخلي خبره ده او دوی پخپله د دغه باید څه غم وخوري

This is an internal matter among Afghans and they themselves should sort out

لطفاً د خپلو ځایو څخه ترهغه وخته مه خوځیږی چې څو الوتکه په مکمل ډول سره نده درېدليې

Please remain seated until the plane stops completely

لطفاً په صنف کې کرار اوسئ

Please remain quiet inside the classroom

ده سګرټ څکول پرېښودل

He quit smoking altogether

دغه سړي ته دغه ښځه باالکل په زړه پورې معلومه شوه

He found her quite attractive

د افغانستان د دفاع وزیر د ملک د مستقلانه سیاسي پالیسۍ د ساتنې مسئول دی

The defence minister of Afghanistan is responsible to protect the sovereignty of the country

په روسیه کې د کمونستانو په دوره کې ډېر خلک ورک شول

During the communist era lots of people disappeared in Afghanistan

دغه وړاندې شوی معلومات ډېر دقيق ندی

↓

The information presented to us is not very accurate

د دالر بيه د يورو په مقابل کې روځ په ورځ کميږي

↓

The price of dollar against euro is decreasing on daily basis

د دالر بيه د يورو په مقابل کې روځ  په ورځ رالوېږي

↓

The price of dollar against euro is decreasing on daily basis

ملګري ملتونه په هرملک کښې دفترې لري

↓

United Nation has offices in every country

اکثره افغانان په خپل ملک کې د امريکا د دايمي هډو د تأسيس کېدو سره  کلک مخالفت لري

↓

The majority of Afghans strongly disagree with the establishment of American permanent bases in their country

الله(ج) د موږه ټول د دوزخ د اوره څخه وساتي

↓

May Allah (SWT) keep us all from the Hell fire

الله(ج) د موږه ټول د جهنم د اور څخه وساتي

↓

May Allah (SWT) keep us all from the Hell fire

زه موړ یم او نوره ډوډی نه خورم

↓

I am full and I do not want to eat anymore

په افغانستان کې ډول ډول انګور شته

↓

There are various types of grapes in Afghanistan

په هرحالت کې له الله(ج) څخه ووېرېږه

↓

Fear Allah (SWT) in every situation

ډېرخوراک او څښاک د ستا د صحت لپاره ښه نه دی

↓

Too much eating and drinking is not good for your health

زه د بسم الله ویلو وروسته د ډوډی خوړل پیل کوم

↓

I always say: بسم الله When I eat

موږ په کور کښې یوځای ډوډی خورو

↓

We always eat together at home

موږ باید هروخت په ښي لاس ډوډی وخورو

We should always eat with right hand

زما پلار غریبانو ته ډوډی ورکوي

My father gives food to poor people

زما دین ماته د ښوکارو امر کوي

My religion orders me to do good deeds

زه له خپل دین سره مینه لرم

I love my religion

اسلام زموږ دین دی

Islam is our religion

الله(ج) دې د مونږه ټولو دین او دنیا برابر کړي

May Allah(SWT) makes our lives good in this world and hereafter

**هرکله چه د محمّد (ص) نوم یاد شي نوباید په هغه درود (صلی الله علیه وسلم) وویل شي**

**Whenever the name of Prophet Mohammad (PBUH) is mentioned, we should say:(صلی الله علیه وسلم)**

مونږه باید هروخت د الله(ج) دربار ته دعاوې وکړو

We should always supplicate to Allah (SWT)

موږ له الله(ج) څخه د فردوس جنت غوښتنه کوو

We ask Allah (SWT) to grant us Janatul Firdaws

موږ له الله(ج) څخه غواړو چې موږه ټول په صراط المستقیم پابند وساتي

We ask Allah (SWT) to keep us all on the straight path (Siratul Mustaqeem)

الله(ج) د موږه په سمه لاره برابر کړي

May Allah (SWT) keep us all on the right path

د روژې په میاشت کې مسلمانان یو له بله سره خپل خواړه د روژه ماتي په وخت کښې شریکوي

In the month of Ramadan, Muslims share their meals with each other when they break their fast

مسلمانان د روژه ماتي په وخت کښې یوځای مړی خوري

Muslims share their meals with each other when they break their fast

افغانان د هر خوراک سره وچه ډوډی ډېره خوښوي

Afghans always like to have bread with their meals

په کابل کې د یوې ډوډی بیه ۸ افغانی ده

In Kabul, one bread costs 8 Afghanies

په کابل کې د یوې ډوډی بیه ۸ افغانی ده

In Kabul, one bread costs 8 Afghanies

ځنې خلک ډېر زړور او ځنې ډارن وي

Some people are very brave and some are very coward

ځنې خلک ډېر غیرتي اوځنې ډېر بې غیرته وي

Some people are very brave and some are very coward

موږ.ه هر وخت باید د الله(ج) دربارته دعاوې وکړو

We should always supplicate to Allah (SWT)

**زه د الله(ج )** ذکر کوم

I mention (remember) Allah(SWT)

مسلمانان د الله (ج ) ذکر کوي

Muslim remember Allah(SWT)

د الله (ج ) ذکرثواب لري

Allah(SWT) remembrance has rewards

مسلمانانو ته ښائي چې د روژې په میاشت کې روژه ونیسي

Muslims are supposed to fast during the month of Ramadan

د پلار او مور او د اولادو تر منځ رابطه باید ډېره کلکه وي

The bond between children and their parent should be very strong

رادار د جنګ په ګټلو کې مهم رول لوبوي

Radar plays a crucial part in winning the war

د افغانستان د رادارو سیستم د جنګ په وخت کې په مکمل ډول سره له منځه تللی

Afghan radar system has been totally destroyed during the war

زه کله چه د افغانانو اولادونه وینم چې په ښوونځیو کې زده کړه کوي ماته ډېره خوښحالي اوراحت راپه برخه کوي

It gives me great pleasure and comfort to see Afghan children being educated in their schools

کابل راډیو زموږ په ملک کې د ډېرو پخوانیو رادیوسټېشن څخه شمیرل کیږي

Kabul Radio is one of the oldest radio station in the country

زموږ اولادونه غواړي چې د مکتب د رخصتی په وخت کې عمره اداء کړي

My children are planning to perform Umra during their school holiday

زموږ اولادونه غواړي چې د مکتب د رخصتۍ په وخت کې عمرې ته لاړشي

My children are planning to perform Umra during their school holiday

# آتلسم درس(لوست)

↓

# Eighteenth Lesson

الله(ج) دې د موږه  په پلار او مور رحم وکړي

↓

May Allah (SWT) have mercy on our parent

موږ باید همېشه د الله(ج) د رحمت سوال وکړو

↓

We should always ask Allah (SWT) for his mercy

د دواړو ملکونو لوړ رتبه مامورين د صلحې په خبرو بوخت دي

↓

High ranking officials from both governments are engaged in peace talk

د لوړو زده کړو د وزارت يو لوړ رتبه مامور په دغه اونۍ کې زموږ له پوهنتون څخه ليدنه کوي

↓

A high ranking official from the Ministry of Higher Education  is visiting our University this week

زه د ستا په تشريحاتو قانع نه يم

↓

I am not satisfied with your explanation

زه د ستا په خبرو قناعت نلرم

↓

I am not satisfied with your explanation

ده تر اوسه په دغه کال کې لږترلږه درى رسمي سفرونه دې ملک ته کړي دي

↓

He had at least three official visits to this country this year so far

رشوت اخستل او رشوت ورکول په اسلام کې په قطعي ډول سره منع دي

↓

Taking or giving bribe is absolutely forbidden in Islam

موږ باید په رکوع کې حد اقل درى ځله سبحان ربى العظيم ووايو

↓

In each ruku we should say at least three times: سبحان ربى العظيم

ر = راديو

↓

Radio

ر = روژه ماتى

↓

Iftar (Breaking Fast)

د روژې په میاشت کښې روژه نیول فرض ده

↓

Fasting is obligatory during the month of Ramadan

ړوند سړى څه نه وینې

↓

A blind person cannot see anything

د ړانده سره مرسته کول په ښه کار کې حساب کيږي

↓

Helping a blind man is counted as a good deed

بې علمه سړى د ړانده مثال لري

↓

An illetrate person is like a blind person

ابوبکرصدیق (رضی الله عنه) لومړی سړی و چې په اسلام مشرف شو

↓

Abubakr (R) was the first man to embrace Islam

هرکال ډېرخک له سعودي عربستان څخه لیدنه کوي

↓

Plenty of people visit Saudi Arabia every year

هغه زاویه چې ۹۰ درجې وي هغوته قائمه زاویه ویل کیږي

↓

An angle which is equal to ninety degrees is called right angle

هغه زاویه چې له ۹۰ درجوڅخه کمه وی هغو ته حاده زاویه ویل کیږي

↓

An angle which is less than ninety degrees is called acute angle

هغه زاویه چې له ۹۰ درجو څخه زیاته او له ۱۸۰ درجو څخه کمه وي، هغو ته منفرجه زاویه ویل کیږي

↓

An angle which is greater than 90 degrees and less than 180 degrees is called an obtuse angle

لطفاً دغه حالت ته له بلې زاویې وګوره

↓

Please look at the situation from a different angle

زما د کلی نوم عرب خیل دی چې د وردګو ولایت د سیدآباد په اولسوالی کې واقع دی

My village name is Arab Khail in Said Abad district in Wardak Province

زما دین اسلام دی

My religion is Islam

اسلام زما دین دی

Islam is my religion

زموږ په ملک کې ډېر بدلونونه راروان دي

Our country is going through lots of changes

زموږ په ملک کې ډېر بدلونونه راروان دي

There are lots of changes happening in our country

زیات سپورت کول د وزن په کمولو کې حتمي کمک کوي

Plenty of exercise will definitely help to loose weight

ته د امتحان د پاره ډېر تکرار ته اړتیا لرې

↓

You need plenty of revision for your exam

ته د امتحان د پاره ډېر تکرار ته ضرورت لرې

↓

You need plenty of revision for your exam

افغانستان په پخوا زمانه کې ډېر ښه رهبران لرل

↓

Afghanistan had excellent leaders in the past

افغانستان په پخوا زمانه کې ډېر ښه زعيمان لرل

↓

Afghanistan had excellent leaders in the past

افغانستان په پخوا زمانه کې ډېر ښه ملي شخصيتونه لرل

↓

Afghanistan had excellent leaders in the past

ښه رهبر هر وخت د ملک د پاره اوږد مهاله ملي ګټې په نظرکې نيسي

↓

A good leader will always consider the long term national interest of the country

په انګلستان کې ډاکتران د ذکام د پاره د دوا نسخه نه ورکوي

↓

In UK doctors do not give any medicine for cold

ذکام یومېکروب دی چې په ډېرو طریقو یو او بل ته انتقال کیږي

↓

Cold is a virus that can be transmitted very easily by many means

کله نا کله د ذکام مرض د مننجیت د مرض سره غلط کیږي

↓

Sometimes cold can be mistaken with meningitis by ordinary people

سږکال په جاپان کې ډېره سخته زلزله وه

↓

There was a devastating earthquake in Japan this year

د ظاهرشاه په دوره کې تر اوس نه امنیت زیات و

↓

During Zahir Shah era security was far better than now

دا د پلار او مور وظیفه ده چې په خپل اولاد حلال وخوري

It is the duty of parent to feed their children with Halal

د پلاراو مور دنده داده چې د حلالو پیسو جامې اولاد ته ورواغوندي

It is the parent duty to cloth their children with Halal

زما زوم زما وراره هم دی

My son-in-law is my nephew as well

حاجیان بنايد د ځنو خاصو زیارتو لیدنه وکړي

Pilgrims are may visit particular shrines

یوه خبره ده چې وائي نه خبر بنه خبر

There is a saying that no news is a good news

زما زوی په رښتیا سره ښه سړی دی

↓

My son is really a gentleman

په مزارشريف کې د سخي زيارت د افغانستان د مشهورو زيارتونو څخه يو زيارت دی

↓

Sakhi shrine in Mazar-e-sharif is one of the famous shrines in Afghanistan

# نولسم درس(لوست)

↓

# Nineteenth Lesson

د افغانستان ژمی په معمولي ډول سره دري میاشتې دوام لري

↓

Winter in Afghanistan usually lasts 3 months

د افغانستان په بعضو ځایو کې ډېرې واورې کیږي

↓

Some parts of Afghanistan get heavy snow during the winter

په ځنو ځایو کې د حرارت درجه منفي ۲۰ درجو ته رسیږي

↓

In some areas the temperature gets below -20 degrees during the winter

په ځنو ځایو کې د یخنۍ درجه منفي ۲۰ درجو ته رسیږي

↓

In some areas the temperature gets below -20 degrees during the winter

په ځنو ځایو کې د تودوخۍ درجه مثبت ۳۰ درجو ته رسیږي

↓

In some areas the temperature gets above 30 degrees during the summer

انسانان باید له خپل ژوند څخه ښه ګټه واخلي

Human being should benefit from his life

بې علمه ژوند ګران دی

Life without education is difficult

زه د ساینس له مضامینو لکه کمیا، بیالوژي او ریاضي سره ډېره علاقه لرم

I like science subjects such as Chemistry, Biology and Maths

مسلمانان بې له الله (ج) څخه بل چاته سجده نکوي

Muslim do not prostrate to anyone except Allah (SWT)

په لمانځه کې سجده کول فرض ده

It is Fard to do Sajda in Salah

د کابل ـ قندهار سرک ډېر پخوانی سرک دی

Kabul-Kandahar road is one of oldest road

په هلمند کې د کابل په نسبت سرکونه کم دي

Helmand got small number of roads compared with Kabul

د صلحې د خبرو ناکامي به د افغان حکومت دپاره غټه ضربه وي

Failure of the peace process will be a big blow to the afghan government

ځني حکومتونه د خپلو وګړو دپاره حتٰی ډېر ساده ضرورتونه نشی پوره کولای

↓

Some governments cannot provide even the basic necessities for its people

په دغه افاده کې: 3y+5 د y ضریب ۳ دی

↓

In the expression 3y+5, the coefficient of y is 3

د یوه پاک ضمیرخاوند به هېڅکله هم دده په شان داسې بد کار ونکړي

↓

A person with a clear conscience will never do such a bad thing like he did

پرمسلمانانوهروخت لازم ده چه د ټولو انسانانو سره ښه رویه وکړي

↓

Muslims are always required to be nice to their felow human beings

موږ.ه د یوه مسلمان په حیث باید کوښښ وکړو چې عربی ژبه زده کړو

↓

We as Muslims should try to learn Arabic language

د اسلام لاره به تا د جنت په لور رهنمائي کړي

↓

The way of Islam will leads you to Paradise

د شیطان لاره به تا د دوزخ  لور ته بوزي

The way of Satan will leads you to Hell

یوې مسلمانې ښځې ته لازم ده چه په عامه ځایونو کې حجاب واغوندي

A Muslim lady is required to wear Hijab in public places

یومسلمان باید همیشه ښه مناسب لباس واغوندي

A Muslim should always wear decent clothes

مشران ورونه باید د کشرانو ورونو او خویندو په تربیه کې ډېره توجه وکړي

Elder brothers should always look after their younger brothers and sisters

هوشیار سړی به د خپل ژوند هره لحظه د دین او د دنیا د ګټې دپاره استعمال کړي

A wise person will use every moment of his/her life to benefit him/her in this world and in the hereafter.

# شلم درس(لوست)

↓

# Twentieth Lesson

Narrated Anas (RA): The Prophet(SAW) used to say, “O Allah! Our Lord! Give us in this world that, which is good and in the Hereafter that, which is good and save us from the torment of the Fire” **(Al-Bukhari)**

**ګرانو او محترمو ورونو اوخویندو السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته !**

له الله(ج) څخه هیله کوم چه تاسې ټول روغ او جوړ وی او الله(ج) د وکړي چه تاسې ماته، زما مور اوپلار ته، زما اولادونو ته، زما ټولې کورنۍ اوټولو مسلمانانو ته د زړه له کومي دعا کړيې وي، اوکنه؟ نو اوس يې لطفاً وکړی!

والسلام• عبدالله وردک• زما اړيکه : abdullahwardak53@gmail.com

په پای کې له تاسو ټولو سره له لرې ځايه خدای په اماني کوم• له الله(ج) څخه هیله کوم چې په افغانستان او ټوله نړی کې هغه شانته صلح راشي چې الله(ج) ته مقبوله او منظوره وي• آمین، یارب العالمین•

